۱۲ - یونس خان کاکړ ، د روب د کاکړانو مشر (۲۰) .

همدا راز ځیني تاریخونه په دې جرګه کې د بلوڅو او ترینانو د مشرانو د ګډون یادونه هم کوي (۲۱) .

دا لویه جرګه د افغانستان د ټولو اوسیدونکو د ملاتړ وړ وه اوټول پښتانه ، تاجکان ، هزاره ګان ، اوزبکان او بلوڅان د پردو په وړاندې په یوه لیکه کې ودریدل (۲۲) .

دا لویه جرګه د کمیت له مخې وړه خو د کیفیت په لحاظ ډیره لویه وه ځکه له یوې خوا د جرګې هر غړي د خپلو لویو - لویو قبیلو نماینده ګي کوله او له بله پلوه همدې مهمې جرګې د آزادۍاو عمومي پاڅون بولۍ ورکړه او سوګند یې پورته کړ چې دښمن به نابودوي ، میرویس نیکه د ګرګین د له منځه وړلو مدبرانه نقشه دوی ته شرح کړه او دوی ورسره ومنله ، نیکه دا هم وویل : د دې لپاره چې د ګرګین لښکرې خورې شي باید د کاکړو او بلوڅو مشران ګرګین ته د مالیې له ورکولو نه غاړه وغړوي ، دی به خپلې لښکرې هغې خواته ویاسي او په مرکز کې به نظامي قوه کمزورې شي ، په همدې ترتیب د پاڅون په ترڅ کې ګرګین سره له ملګرو یې غافل ونیول شول او د ده د ټول لښکر د له منځه وړلو او خوړولو نقشه کامیابه شوه او په دې ترتیب تر دوه نیم سوه کلنۍ تجزیې وروسته د افغانستان یوه برخه له پردي تسلط نه آزاده شوه (۲۳) .

## ۳ - د نیکه دریيمه لویه جرګه :

دوهمې لویې جرګې د پاڅون قوماندې ورکړه ، د یوې شپې په ترڅ کې کامیابه شوه او ملي اوښتون رامنځ ته شو ، نیکه تر بریالیتابه وروسته یو ځل بیا د قومي مشرانو ملي جرګه راوبلله او دې جرګې ته یې هغه مشران هم راوبلل چې د ګرګین له لاسه یې کور کلي پرې ایښې

او غرونو ته ختلي وو ، دا جرگه هم د کمیت او هم د کیفیت له امله لویه وه ، اوښتون شوی و ، د اوښتون ساتنه په کار وه او د تیري کوونکي دښمن لاس لنډونه ، نیکه جرگې ته خپل مرام شرح کړ او د دوی په وړاندې یې د خپل حکومت بنه وټاکله ، ده وویل :

« ای افغاني اولسه ! له زړه نه وایم چې زما یوازینی هدف ستاسو خپلواکي وه ، خپلواکي داسې متاع ده چې د هغې په لاره کې هر څه کول په کار دي ، گرگین ووژل شو ، که له ما سره یو او یو لاس شئ او زما ملا وتړئ نو د ذلت او اسارت زنځیرونه به له غاړې نه وغورځوو ، د خپلواکۍ اوعزت بیرغونه به مو د هیواد په گوټ - گوټ او د نړۍ په هیوادونو کې ودریږي ... رښتیا هم قام د دین او وطن په لاره کې لوی خدمت ترسره کړ ، خپله سکه یې په مرمرو کې ووهله او د قیامت ورځې ته یې ښکلی اثر یادگار پریښود ... » (۲٤) .

ده د خپلې اوږدې او جذابې وینا په پای کې وویل : « بیا هم هغه څه چې د محمدي شریعت او افغاني غیرت غوښتنه وه ، وویل شول ، اوس هم که داسې څوک په تاسې کې وي چې د پردیو غلامي ترخپلواکۍ ښه گڼي او خپل لاسونه د خپلواکۍ په هغه زرینه رسۍ چې له آسمانه راغځیدلې نه نیسي ، په بشپړه آزادۍ ویلای شي ، خو په ښکاره ټکو کې باید ووایم چې بیا دې نو له موږ سره د اوسیدو تمه هم نه لري او باید زموږ له خاورې او ملي ریاست نه ووزي او د کوم ظالم باچا ترسیوري لاندې ژوند غوره کړي » (۲۵) .

دې جرگې په همهغه ورځ میرویس نیکه خپل مشر وټاکه خو ده د باچا نوم پرځان کښینښود او په « ملي مشر » یې اکتفا وکړه او په حقیقت کې یې په دې عمل سره په افغانستان کې د جمهوریت خښته کښیښوده .

د میرویس نیکه ترمړینې وروسته د ده اخلافو دا ریاست په پاچاهۍ واړاوه او هم یې د جرګې زرین اصول هیر کړل نو ډیر ژر د واکمنۍ په سر له کورنیو شخړو سره مخامخ شول او په نتیجه کې د « خوش درخشید ولی دولت مستعجل بود » په بنا د دیرشو کلونو په اوږدو کې د آزادۍ دا لمر پریووت او یو ځل بیا د نادرافشار د فشار په نتیجه کې د نورو غلامۍ خپله کرغیړنه څیره را برسیره کړه . په ۱۷۳۷ م کال کې کندهار تر یو کلنې کلا بندۍ وروسته د افشاریانو لاس ته ورغی او نوموړی خونخور پاچا تر ۱۷٤۷ کال پورې پر افغانستان سربیره هند هم لاندې او د هند مغولي واکمنې یې رانسکوره کړه (۲٦) .

# د احمد شاهي دورې لويې جرګې

## ٤ - د شیر سُرخ د مزار جرګه :

کله چې د ۱۷٤۷ کال د جون په ۱۹ نیټه نادرافشار د ده باوري منصبدارانو وواژه یوځل بیا د دې زمینه برابره شوه چې د افغانستان خپلواکي ترلاسه او د افغانستان د خپلواکی حکومت لپاره یو انتخابي مشر رامنځ ته شي . د دې مهمې سیاسي مسألې د حل لپاره د قومونو مشرانو بیا هم د لویې جرګې لمنې ته لاس وغځاوه او د کندهار د شیر سُرخ په مزار کې د یوې لویې جرګې غونډې پیل شوې ، په جرګه کې د زیاتو قومونو مجربو او باوري مشرانو برخه درلوده ، د دې جرګې مهم غړي دا وو :

نور محمد خان غلجی ، محبت خان پوپلزی ، موسی خان اسحق زی ، نصرالله نورزی ، حاجی جمال خان بارکزی او ...

په دې مزار کې د لویې جرګې غونډې اته ورځې وشوې خو نتیجه یې

ځکه ورنه کړه چي یوه مشر هم بل مشر ته خپل واك نه شو ورکولی او پرخپل ځان یې د هغه واکمني نه شوای منلی ، که څه هم په لوميړي نظر د دې کار لپاره نور محمد خان ميرافغان ډير وړ بريښيده ځکه هم د پاخه عمر او هم د پخې تجربې خښتن و او په ټولو غلجي ټبرونو کې يې محبوبيت اونفوذ درلوده خو څرنگه چي توند مزاج يې درلود ونه ټاکل شو ، حاجی جمال خان هم زيات قومي ځواك درلود او مشران ويريدل چي دی د واکمنۍ په وخت کې استبداد ته لاس ونه غځوي نوځکه ټولو هڅه درلوده داسې څوك رامنځ ته کړي چي د دوی له آزاد مزاج ، د جرگې له اصولو او د افغانانو له اولسي رواياتو او عدالت سره سم گام واخلي او په راتلونکی کې استبداد ته لاس ونه غځوي او هم د ډيرې پياوړې قبيلې مشر نه وي (۲۷) .

تر نهمې غونډې پورې د مشر لپاره ټول شرايط ټاکل شوي وو ، د شير سُرخ د مزار ملنگ صابرشاه په دې جرگه کې يو د کم عمر ځوان چي غلی به ناست خو غښتلی متهي او زياته هو ښياري يې درلوده په دې شرايطو برابر وموند ، له ځايه پاڅيد ، له نژدې کروندې نه يې د غنمو وږی ( له بل روايت د وريشو وږی ) راوشکول ، رايې وړل ، دې ځوان ته يې تاج ترې جوړ کړ ، په دستار يې ور وټومبه او غږ يې وکړ چي : « زه د دې نوي مسؤوليت لپاره دا ځوان ټاکم ! » د ټولو مشرانو دا ټاکنه خوښه شوه ، هو دا ټاکل شوی ځوان احمد خان و چي له دې ورځې نه وروسته د احمدشاه بابا په نامه ياد شو او په ډير لږ وخت کې يې د خپل عقل ، فراست اوميړانې په مټو لويه افغاني امپراتوري جوړه کړه او د افغانستان ټولې خاورې يې د نورو له واك نه آزادې کړې (۲۸) او تر دوه نيم سوه کلنۍ دريه دری وروسته د افغانستان بشپړه آزادي ترلاسه شوه .

دا جرگه هم د کميت له نظره ډيره لويه نه وه او خو معدودو او

محدودو مشرانو برخه پکې درلوده خو د کیفیت له پلوه ډیره لویه جرگه وه ځکه د افغانستان د لویدیځ د مهمو قومونو باوري مشران پکې موجود وو او هم له دې کبله چې یو لوی سیاسي گام یې واخیست او د هیواد د مشرتابه په برخه کې یې پوخ او مدبرانه تصمیم وکړ او د دې انتخاب نتیجه ډیره په زړه پورې او مطلوبه وه او د پښتنو هغه متل یې رښتیا کړ چې وایي : « کار چې په سلا وي بې بلا وي » .

د احمد شاه بابا ترمړینې ( ۱۷۲۷ م ) وروسته د ده په اولاده کې د اقتدار پر سر خونړۍ کورنۍ شخړې پیل شوې ، مدبر وزیر شاه ولیخان بامیزایی د تیمورشاه له خوا ووژل شو او د قومي دښمنیو په نتیجه کې تیمورشاه په ‌غلا پایتخت کابل ته راولیږداوه ، د ده ترمړینې وروسته د ده زوی زمانشاه د تیمورشاه د زامنو له منځ نه د یوه تن په پاچاهۍ ټاکونکی جرگه د زندان میلمه کړ او د واك پر سر په واکمنه کورنۍ کې وژنې او قتل و خون دومره زیات شو چې بالاخره انگریزانو په ۱۸۳۸ م کال کې له دې نفاق نه درنه استفاده وکړه ، زموږ پر هیواد یې وسله وال تیری وکړ او زموږ ملي واکمني یو ځل بیا رانسکوره شوه ، د دې ټولو بدبختیو لوی علت د جرگې ( شوری ) شاته اچول او د سلا او مشورې له منځه تلل وو (۲۹) .

## د اولس جرگې

### ۵ - د جهادي مشرانو جرگه :

انگریزانو ، رنجیت سنگهـ او د افغانستان فراري پاچا شاه شجاع د ۱۸۳۸ کال په جون کې یو دري اړخیز تړون لاسلیك کر ، په دې تړون کې شاه شجاع ته وعده ورکړه شوه چې دی به د افغانستان پاچاهۍ ته

رسول کیږي او ده هم د قدرت په هوس کې د افغانستان زیاتې سیمې انګریزانو او سکهانو ته ورو‌بخښلي او د دوی بشپړه غلامي یې ومنله ، د همدې قرارداد په بنا شاه شجاع له انګریزي لښکرو سره د سندهـ او بولان له لارې پر کندهار راغی ، کندهار یې ونیو او هلته د انګریزانو له خوا د ده تاجپوشي وشوه ، بیا یې د کابل پر لور لښکر کشي وکړه . غزنی یې لاندې کړ او امیر دوست محمد خان له کابل نه د بخارا په لورتېښته وکړه ، شاه شجاع انګریزانو کابل ته راووست او پر تخت کښېنول شو ، انګریزي نماینده مکناټن او نورو انګریزانو علناً ټول اختیارات ترلاسه کړل او پاچا د کلمې په حقیقي معنی « تش په نامه پاچا و » (۳۰) .

د افغانانو د ملي جرګو برکت و چې افغانانو ته یې له پردو یرغلګرو سره د مقابلې داسې ملي شعور ورکړی و چې هر افغان خپل مسؤولیت ګاڼه چې بې له قبلي مفاهمې په خپله ، خپله سیمه کې راپاڅیږي او د پردي تیري په مقابل کې ملي لښکر تنظیم او له تیري کوونکو سره مقابله پیل کړي .

په همدې اساس کله چې انګریزان له کندهار نه تر کابل پورې راتلل ، په لاره کې ډیر بریدونه پرې وشول او دوی هم خصوصاً په غزني کې مجاهدین په ډیر وحشت او قساوت قتل عام کړل خو دې وحشت او دهشت نه یوازې دا چې خلك ونه ویرولای شول ، بلکه د ملي پاڅیدنو حلقه یې لا پسې پراخه کړه ، د افغانستان په ګوټ - ګوټ کې خلك پاڅیدل ، پر انګریزی او د دوی د غلام پاچا پر تأسیساتو بریدونه پیل شول ، د ملي پاڅون حلقه د مرکز پر لور راتنګیدله او د بیلو - بیلو سیمو د مجاهدینو ترمنځ مفاهمې ټینګیدلې ، د دې پاڅون او د دې مفاهمو نتیجه دا شوه چې یوځل بیا یوه ملي لویه جرګه رامنځ ته کړي ، د روژې په یوه مبارکه شپه کې د ۱۸۴۱ م کال د نومبر په لومړۍ‌نیټه د

کابل ښار په زړه عاشقان وعارفان کې د مشرانو یوه جرگه راغونډه شوه او د یوه عمومي پاڅون لپاره یې پریکړه وکړه ، جرگې چې د بیلا بیلو قومونو مشران پکې وو د پاڅون د رهبرۍ لپاره یوه دوولس کسیزه شورا جوړه کړه ، استازي یې وټاکل چې خلك پاڅون ته وهڅوي . د انگلیسانو مخابرې او ارتباطات تر څارنې لاندې ونیسي او نور لازم اقدامات وکړي .

د انقلابي شورى د مشرۍ لپاره یې نواب محمد زمان خان د رئیس په حیث او امین الله خان لوگرى د « نایب » په حیث وټاکل . د دې شورى نور مهم غړي : غازي عبدالله خان اڅکزی ، میر مسجدي خان او ځینې نور کسان وو او د انقلاب د څرخ په څرخولو کې د دې مشرانو هم لوى لاس و : سکندر خان بامیزی ، امام ویردی ( اوزبك ) ، ملا احمد برنج فروش ، اکبر خوابگاهی ، آغا حسین قزلباش او نور په لسهاوو کسان (۳۱) .

د دې لویې جرگې د تدبیرونو په رڼا کې په دوو میاشتو کې دننه انگریزانو شرمیدلې ماته وخوړه او مجبور شول چې د ۱۸٤۲ کال د جنورۍ په ٦ نیټه کابل تخلیه کړي او د افغانستان آزادي ومني (۳۲) .

دا لویه جرگه هم د کمیت له پلوه ډیره لویه نه وه ځکه د نړۍ د وخت د لوى ښکیلاکي ځواك ترواك لاندې سیمو کې جوړېده او د امنیت ساتلو یې بشپړه هوښیاري غوښته چې وښوده شوه خو د کیفیت له خوا ډیره لویه جرگه وه او د ملي پاڅون لپاره یې داسې تدبیرونه ونیول چې په ډیره ښه توگه یې ملي رهبري وکړای شوه او په ډیر لنډ وخت کې یې د هیواد آزادي ترلاسه کړه خو افسوس چې د انگریزانو تفتین د قدرت ته رسیدو تروخته پورې د دې جرگې ځینې غړي ، لکه غازي عبدالله خان اڅکزى او میر مسجدي خان د خاینانو او د خپلو عمالو په لاسونو شهیدان کړي وو او پاتی یې هم د ښتیدلي امیر دوست محمد خان د حکومت د بیا ټینگیدلو په اثر تس نس شول خو بیا یې هم د نړۍ په

تاریخ کې یو لوی کار ترسره کړی و او هغه هم د لومړي ځل لپاره د انګریز د مغرور ښکیلاك شرمیدلې ماته وه ځکه تر دې وخته دوی خپل قدرت نه ماتیدونکی ګاڼه او د نړۍ نورو لویو او وړو هیوادونو هم فکر کاوه چې انګریز نه ماتیدونکی قوت او قدرت دی .

## د امیر شیرعلي خان لویې جرګې

### ٦ - لومړۍ لویه جرګه :

امیر شیرعلي خان چې یو روڼ فکره پاچا و او لویو جرګو تهٔ یوځل بیا ارزښت ورکړ ، ده په ١٨٦٥ م کال په کابل کې یوه لویه جرګه جوړه کړه ، دې جرګې ته یې د هیواد له بیلا بیلو سیمو نه دوه زره کسان راوبلل څو ده ته د ده د وروڼو د اختلاف او دښمنیو په باب مشوره ورکړي ، چې تردې مشورې وروسته له خپلو وروڼو سره جګړې ته متوجه شو ، په نتیجه کې یې ماته وخوړه او د کابل تخت یې وروڼو ترې ونیو (٣٣) .

### ٧ - دوهمه لویه جرګه (٣٤) :

همدا راز ده د خپلې واکمنۍ په دوهمه دوره کې په ١٢٩٠ هـ ق ( ١٨٧٣ م ) کال د خپل ١٣ کلن زوی عبدالله خان د ولیعهدی لپاره یو لوی جشن جوړ کړ او د شمس النهار د یوه اقتباس په استناد پنځه سوه زره تنه مخور او سپین ږیري ورته راغونډ شوي وو (*) او اووه شپې او ورځې یې دوام درلود (٣٥) د همدې لویې غونډې په دوران کې امیر شیرعلي خان د افغانستان لومړنۍ کابینه جوړه کړه : سید نور محمد شاه یې صدراعظم وټاکه او د بیلا بیلو چارو لپاره یې وزیران موظف کړل (٣٦) .

---

(*) دا شمیره له عقل نه لرې ده کیدای شي یا په اقتباس او یا په خپله اخبار کې شمیره غلطه چاپ شوې وي ( لیکوال )

دا دواړې جرګې د کميت په لحاظ ډيرې لويې وې او خصوصاً د دوهمې جرګې د ګډون کوونکو د شمير په اقتباس کې که غلطي شوې وي هم يقيناً ډيره لويه جرګه به وه خو کيفيت يې د پخوانيو جرګو غوندې نه و ، ځکه اهداف يې ترهغې واړه وو ، له وروړو سره جګړه د اقتدار جګړه وه او خلکو له داسې موضوع سره ډيره علاقه نه ښوده او هم د وليعهد تاکل د پاچا يو بل هوس و چې د خپل لوی زوی محمد يعقوب خان سره د مخالفت له امله يې کړی و خو بيا يې هم لويه ميوه په افغانستان کې د يوه منظم او عصري حکومت او کابينې رامنځ ته کيدل وو .

# بيا هم د اولس جرګې

## ۸ - د مجاهدينو ارتباطي جرګه :

په ۱۸۷۹ ع کال انګريزانو يو ځل بيا پر افغانستان وسله وال بريد وکړ . امير شيرعلي خان کابل پريښود او مزارشريف ته د روسانو د مرستې په تمه ولاړ خو هلته زړه چاودی مړ شو ؛ انګريزانو د ده زوی يعقوب خان چې له زندانه پر تخت کښينول شوی و له ځانه سره مل کړ . د ګندمک شرميدلی تړون يې ورسره وکړ او د افغانستان حکومت يو ځل بيا د انګريزانو لاس ته ولويد . د افغانستان اولس هم د خپل طبيعي خصلت له مخې د پاڅون لاره ونيوه ، په هرځای کې سره راغونډ شول او د خپلو ملي مشرانو په لارښوونه يې پر انګريزانو بريدونه پيل کړل . د کابل ، کوهدامن او کاپيسا د جهاد مشران محمد کريم خان ، غلام حيدرخان کابلي ، ميربچه خان کوهدامنی ، ميرغلام قادرخان اوپيانی ، پرويزشاه خان پغمانی ؛ د تګاو او نجراو جهادي مشران محمد عثمان خان ساپی او ورور يې محمد شاه خان ؛ په لوګر کې د جهاد مشران غلام

حیدرخان څرخي ، سمندر خان او محسن خان لوګري ؛ د میدان او وردګو جهادي مشران محمد جان خان وردك او ملا عبدالغفار خان لنګري ؛ د غزني او زابل جهادي مشران ملا دین محمد اندړ چې په ملا مشك عالم مشهور دی ، عبدالقادرخان غزنوي او ګل محمد خان اندړ ؛ په هرات کې نایب سالار حفیظ الله خان او سردار محمد ایوب خان ، په ننګرهار کې عصمت الله خان جبارخیل او د هیواد په ګوټ - ګوټ کې په سلهاو نور کسان چې د ملا مشك عالم د وینا له مخې د جهاد ټول مشران دري زرو تنو ته رسیدل (۳۷) .

دوی ټولو د هیواد په بیلا بیلو برخو کې محلي جرګې جوړې کړې وې او د ارتباطي شبکو له لارې یې دې جرګو ته د یوې واحدې جرګې بڼه ورکړې وه او د جهاد په ارتباط یې ګډ تصمیمونه نیول . د همدې ګډو تصمیمونو له مخې مجاهدینو د انګریزانو او مزدور حکومت ځالې ورانولې ، د مرکز په لور رالنډیدل او د کابل د محاصرې حلقه تنګیدله ځو چې د ټولو سیمو مجاهدین له خپلې خپلې خوا پر کابل راچاپیر شول او په انګریزي چونیو یې اور بل کړ. په دې بریالي جهاد کې نارینه وو او ښځو ګډه برخه درلوده او د ۱۸۷۹ کال په دسمبر کې یې سوړ ژمی د انګریزانو لپاره په سره تنور بدل کړ او یو ځل بیا یې انګریزانو ته شرمیدلې ماته ورکړه .

دې جرګو د انګریزانو د شړلو پروګرام درلود خو د افغانستان د آزادۍ د سنبالولو کوم پروګرام ورسره نه و ، نوځکه کومه سکه چې محمد جان خان ضرب کړې وه پرې لیکلي یې وو :

میکنم دیوانگی تا بر سرم غوغا شود

سکه به زر میزنم تا صاحبش پیدا شود (۳۸)

او له همدې نیمګړتیا نه انګریزانو ګټه واخیسته له سردار عبدالرحمن

( ۱ )

# څپرکی

# د جرګو تاریخي څیره

په لرغوني افغانستان یا زړه آریانا کې د « جرګې » مؤسسه یوه هغه تاریخي ، سیاسي او اجتماعي مؤسسه ده چې په پراخه پیمانه یې د اولسي ارادې څرګندویې او ښکارندویې کړې او په محلي او ملي او حتی د افغانستان په اړه په بین المللي چارو کې یې اغیزمن او عملي رول درلودلی او د ملي تصمیم کرښې یې ټاکلې دي .

آریائیانو د یوه داسې نظام په غیږه کې ژوند کاوه چې اوس یې دموکراسي بولي : په قبیله یې کارونو او د کلي او قریې د ژوندانه او په مملکتي لویو او مهمو چارو کې به یې د ملت د ټولو طبقو له مشورې ، نظریاتو او افکارو څخه کار اخیست او د دې مقصدونو لپاره یې بیلا بیل مجلسونه درلودل چې دوه مشهور یې « سبهار » او « سمیتي » دي (۱) .

خان سره یې اړیکې ټینګې کړې او تر پټ تړون وروسته یې ده ته د پر تخت کښیناستلو بلنه ورکړه.ده ظاهراً د جهاد اعلاتونه نشر کړل او د مجاهدینو له لاري حکومت ته ورسید ، انګریزان هم جسماً له افغانستان نه ووتل خو په غیرمستقیم ډول عبدالرحمن خان د دوی د تحت الحمایه پاچایانو په توګه پاتی شو .

د مجاهدینو دې ارتباطي جرګو یو ځل بیا د افغانستان آزادي تأمین کړه او دا جرګه هم د کمیت او هم د کیفیت له اړخه لویه او مهمه وه او دا چې وروستی نتیجه یې دښمنانو وترورله لوی علت یې دا و ، چې د افغانستان خلك له خارجي ښکیلاك سره ژوره دښمني لري خو له کورني استبداد سره بیا غیرملي او استبدادي حکومتونو روږد کړي دي .

## د سراجي دورې جرګې

### ۹ - د بیطرفۍ لویه جرګه :

د ۱۹۱۳ م کال په اګست کې نړیوال عمومي جنګ ونښت ، په دې جنګ کې انګریزانو د افغانستان له تحت الحمایه حکومت نه توقع درلوده چې افغانستان د انګریز په ملاتړ په جنګ کې برخه واخلي او که نه نو بې طرفه پاتی شي ؛ د افغانستان روشنفکرانو او پر آزادۍ مین اولس اراده درلوده چې انګریزانو له جنګي مصروفیت نه په استفادې کولو سره له انګریزانو سره وجنګیږي او له تحت الحمایګۍ نه ځان خلاص کړي ، کابل ته راغلی د جرمنیانو او ترکانو هیئت له افغانستان نه غوښتنه کوله چې د دوی ملاتړ وشي او د انګریز په وړاندې په جګړه کې برخه واخلي او له دوی سره به په دې برخه کې هر ډول مرسته کیږي (۳۹) خو امیر حبیب الله خان د موضوع د باریکۍ له امله منځنۍ لار خوښه کړه او د

افغانستان بشپړه بې طرفي يې اعلان کړه او انگريزانو ته يې په جگړه کې د نه شامليدو ډاډ ورکړ ؛ محمود طرزي په سراج الاخبار کې د « حی علی الفلاح » ويښوونکی مقاله چاپ کړه خو د انگريزانو له خوا په مطبعه کې سانسور او له نشر څخه پاتې شوه (٤٠) .

پاچا په ١٩١٥ م کال د خپلې بې طرفۍ د تائيد لپاره د افغانستان مشهور مشايخ ، لکه د اسلام پور پاچا ( ميرصاحب جان ) ، د موسهي اخونزاده ( ملا محمد جان ) ، د تگاو ملا صاحب ، د هډې اخونزاده ، د برو ميا صاحب ، د حصارك ميا صاحب ، شمس الحق صاحب ، د شور بازار حضرات ، حافظ جي صاحب ، ملا محمد مريد ، ملا عبدالغفار اخونزاده اونور کابل ته راوغوښتل ؛ د دغو مشايخو اونورو اولسي وکيلانو په شمول يوه لويه جرگه د امير په وړاندې جوړه شوه او د ملت د اتفاق او د دولت د بې طرفۍ د سياست ملاتړ يې وکړ (٤١) .

په دې لويه جرگه کې که څه هم ظاهراً انگريزان د افغانانو له گوزار نه خلاص شول خو افغانستان هم له تباهۍ او د نړيوال جنگ له ډگر گرځيدو څخه بچ او د نړيوالې سوځوونکی جگړې له لنبو څخه وژغورل شو .

## د اماني دورې لويې جرگې

### ١٠ - د « اتحاد مشرقي » په نامه لويه جرگه :

د ١٩١٩ م کال د فرورۍ په ٢٠ نيټه د آزادی غوښتونکو يوې ډلې د افغانستان تحت الحمايه پاچا امير حبيب الله خان د يوې کودتا په ترځ کې وواژه او تر دې وروسته د ده زوی امان الله خان د افغانستان بشپړه خپلواکي اعلان کړه او د افغان او انگريز دريم جنگ ونښت ، په جنگ کې انگريزانو د هيواد په جنوبي او غربي جبهو کې سخته او شرميدلې

ماته وخوړه او د متارکې وړانديز يې وکړ . د افغانستان حکومت متارکه ومنله خو انګريزانو يو ځل بيا غوښتل چې نظامي ماته په سياسي ډګر کې جبيره کړي او هغه څه چې په جنګ يې له لاسه ورکړي وو په سوله کې يې ترلاسه کړي ؛ د راولپنډۍ د سولې په غونډه کې يې د افغاني هيئت مشر والي علي احمد خان وغولاوه او يوه مغلوبانه صلحنامه يې پرې لاسليك کړه خو بيا هم دولت نور اقدامات وکړل او د ۱۹۱۹ م کال په اګست کې انګريزانو زموږ بشپړه آزادي ومنله (٤٢) . له دې سره هم داسې ګنګوسې لا خورې وې چې انګريزان به يو ځل بيا پر افغانستان وسله وال تيرى وکړي ، د داسې يوه تيري د مقابلې لپاره د مشرقي تنظيمه رئيس محمد نادرخان د « اتحاد مشرقي » په نامه يوه لويه جرګه راوبلله ، جرګه په ننګرهار کې د هډې صاحب د زيارت ترڅنګ راغونډه شوه ، په دې غونډه کې د مشرقي ( اوسنى لغمان ، کونړ او ننګرهار د ولايتونو ) د بيلا بيلو قومونو سپين ږيري ، عالمان ، سادات ، مشايخ اونور مخور سره راغونډ کړای شول او د خپلواکۍ د ساتنې او د وطن د دفاع او آبادۍ په برخه کې يې مهمې پريکړې وکړې ، دوى وغوښتل چې انګريزان دې د افغانستان آزادي د زړه له کومې ومني او که نه نو د سرحد ټول اقوام او قبايل د جهاد لپاره چمتو او اماده دي او د افغانستان آزادي به په خپلو وينو ساتي . په همدې غونډه کې د هر قوم مشرانو د پاك قرآن په حاشيه کې ژمنه ليك کړه ، د هر قوم ذمه وارى يې وټاکلی ، د جهاد مشران او علمبرداران يې تعيين کړل ، د حکومت له خوا هر مشر او علمبردار ته يوه - يوه ښه تومانچه چې د هماغه قوم نوم او د جهاد د محاذ نوم يې پرې کيندل شوى و ورکړه شوه او پر نورو سوغاتونو سربيره هر يو قوم ته د جهاد يو - يو علم شريف هم ورکړ شو چې د جهاد آيتونه پکې ليکل شوي وو (٤٣) .

د همدي تاريخ غونډۍ په افتخار په مشرقي کې د « اتحاد مشرقي » په نامه يو اخبار د ۱۹۲۰ کال د فروری په ۲۸ نيټه په خپرونو پيل وکړ (٤٤) .

دا لويه جرگه د آزادۍ ساتلو لپاره شوې وه ، د کميت له پلوه لويه وه ، د کيفيت له پلوه سره له دې چې د ټول هيواد د مشرانو جرگه نه وه خو اغيز يې عمومي او کيفيت يې لوړ و او انگريزان يې مجبور کړل چې د هندوستان په مسورۍ کې له افغاني هيئت سره د موضوع د هر اړخيز حل لپاره خبرو ته چمتو شي .




## ۱۱ - د اساسي قانون جرگه :

د افغانستان د خپلواکۍ او په ځنگ کې يې د مشروطه او قانوني حکومت د ټينگيدلو لپاره منظمه روشنفکري مبارزه له پخوا نه پيل شوې وه او د مشروطيت غورځنگ چې په ۱۹۰۵ کال کې په منظم ډول رامنځ ته شوی و (٤٥) د وخت د تحت الحمايه پاچا له خوا په بيرحمۍ وکوټل شو خو غلی نه شو او نور هم غښتلی شو خو يې په نتيجه کې پاچا را نسکور او د آزادۍ جهاد پيل شو . د همدې مبارزې په دوام په افغانستان کې د قانون جوړونې او د قواوو د تفکيك کار پيل شو او د افغانستان د لومړني اساسي قانون مسوده جوړه شوه . د دې « اساسي نظامنامې » د منلو او تصويب لپاره د ۱۹۲۳ کال د فرورۍ په ۲٦ نيټه د ملت د مشرانو لويه جرگه راوغوښتله شوه چې ۸۷۲ نماينده گانو برخه پکې درلوده او د افغانستان دا لومړنی اساسي قانون يې تصويب کړ (٤٦) .

دې قانون ۷۳ مادې درلودې ، چې زموږ د هيواد سياسي او اجتماعي بنه ، د خلکو حقوق ، اداري تشکيلات او اساسات ټاکلي وو . دې قانون خلکو ته د فکر د آزادۍ ، د کار د آزادۍ ، د خبرو د آزادۍ او

د کور او حیثیت د مصؤونیت وعده وکړې وه او د قانون حکومت پکې اعلان شوی و (٤٧) .

د دې لویې جرگې کمیت او کیفیت دواړه لوړ وو او د اساسي قانون په تصویب سره یې افغانستان ته د قانوني ودې او پراختیا زمینه برابره کړه او هم د دې جرگې ترجوړېدو لږ وخت وړاندې د ۱۹۲۱ کال په اگست کې د دولت شوری جوړه شوې وه چې د هیواد مخور ، عالمان ، سادات او مشایخ پکې راغونډ وو . د قوانینو مسودې به یې جوړولې او د ارگ په شمالي برج کې یې ځای ورته ټاکلی و (٤٨) .

## ۲ - د پغمان لویه جرگه :

دا لویه جرگه د ۱۹۲٤ کال په جولای کې په پغمان کې جوړه شوه او د دولت خارجي تړونونه ، روابط او کورني قوانین اومسایل یې تر غور لاندې ونیول ، لیکن په حقیقت کې دا لویه جرگه د منگلو د سر اخیستنې په باب وه (٤٩) او کوم اعتراضونه چې دوی په قوانینو درلودل د هغو ترمیم وشو (٥٠) .

په دې لویه جرگه کې ټول ۱۰۵۲ تنه راغونډ شوي وو چې ۲۳۱ تنه یې د دولت وتلي مامورین او پاتې یې د بیلا بیلو ولایاتو خانان ، سیدان ، عالمان ، شیخان او ټاکلي وکیلان وو . د جرگې مشري د وخت د پاچا په غاړه وه او د هیواد پر ټولو داخلي او خارجي چارو مفصل بحثونه او پریکړې پکې وشوې (٥١) .

دا جرگه د کمیت په لحاظ هم لویه وه او د اهمیت په لحاظ هم ، ځکه لومړی ځل و چې د اولس له نمانده گانو سره دولتي اسرار تربحث لاندې ونیول شول او حتی دوی پرې وپوهول شول .

## ۱۳ - د اماني دوری وروستۍ لويه جرگه :

دا جرگه داسې وخت جوړه شوه چې د وخت پاچا د اروپا د خپل شپږ نيم مياشتني اوږده سفر نه بيرته هيواد ته راستون شوی و . ده ډير نوي شيان ليدلي وو او غوښتل يې چې افغانستان هم په يوه گام د نړيوال تمدن په كاروان پسې ورسوي نو د خپلو نويو پروگرامونو د اعلان لپاره يې د ۱۳۰۷ كال د وږي په ٦ نيټه ( د ۱۹۲۸ اگست ) په پغمان كې لـويه جـرگه راوبلله ، په دې لـويه جـرگه كې دوو زرو تنو برخه درلوده (۵۲) چې د وږي په ۱۰ نيټه پای ته ورسيده (۵۳) .

د دې جرگې مهم مصوبات دا دي : د دولت شورى په ملي شورا بدلول ، د مجرمينو جزا بخښل د پاچا حق دی ، د تفتيش د عمومي دايرې جوړول ، د دارالعجزه او دارالمجانين جوړول ، د ځارو د سر شمير وخت ټاكل ، د عسكري خدمت درې كلنه دوره منل ، د نښانونو الغاء ، رسمي لباس ټاكل د ملكي رتبو الفاظ د رسمي او خصوصي القابو له منځه وړل ، د هر جُرم تعذيری جزا ټاكل ، د عصري محكمو جوړول د خطيبانو او مدرسينو لپاره د شهادتنامو د موجوديت شرط اېښودل ، د حربي قواوو د پياوړتيا لپاره د اولس مالي مرسته كول ، د رشوت مخه نيول ، د واده كولو د سِن تعيينول ، د وليعهد ټاكل ، د افغانستان لپاره درې رنگه بيرغ منل او د ملي نښان تاكل (۵٤) .

همدا راز دې لويې جرگې پريكړه وكړه چې لويه جرگه به تر دې وروسته د هرو پنځو كلونو په تيريدو مركز ته راغوښتله كيږي او غړي به يې د پاچا ميلمانه وي ، همدا راز لويې جرگې اولسي جرگې ( ملي شورى ) ته بشپړ واك وركړ چې د ملت او هيواد په گټه ټول جوړ شوي قوانين ومني او د اجراء وړ وگرځي (۵۵) .

په دې جرگه کې د ملت نماینده گانو خپله رایه په صراحت بیانوله او له اخلاقي جرآت نه یې کار اخیست خصوصاً د دیني چارو په برخه کې ډیر ځیر وو او د امان الله خان له ټینگار سره سره یې ځینې خبرې ،لکه د واده د سن ټاکل او نورې ونه منلې شوې (٥٦) .

له دې سره – سره دا جرگه د کمیت په لحاظ لویه وه خو د کیفیت په لحاظ یې له یوې خوا غیرضروري ، احساساتي او حتی د زمان او مکان په لحاظ مضر وړاندیزونه درلودل نوځکه یې نتایج د هیواد لپاره ډیر خطرناك ثابت شول او د یوه تباه کن اړدوړ زمینه یې رامنځ ته کړه او ځه مو چې درلودل هغه هم د دې اغتشاش په اور کې وسوځیدل .

ځینې مؤرخین د وخت له پاچا سره د وزیرانو کار شکنې او د دوی له خوا د لویې جرگې د وکیلانو تحریکول هم د دې لویې بربادۍ یو عامل گڼي (٥٧) .

## د نادر خان دوره

## ١٤ - د ١٣٠٩ لویه جرگه :

د ١٣٠٩ کال په وري ( د ١٩٣٠ سپتمبر ) کې په کابل کې د وخت پاچا محمد نادرشاه یوه لویه جرگه راوغوښته چې ٣٠١ تنه انتخابي وکیلان او ٢٢٧ تنه د دولت مامورین او خارجي سفیران پکې وو (٥٨) .

د پاچا په افتتاحیه وینا کې د دې لویې جرگې د راغوښتل کیدو مطلب د ملي شورى د مقرراتو ټاکل ښودل شوي (٥٩) او هم همدې لویې جرگې د افغانستان تجدید شوى اساسي قانون بیا منلى (٦٠) خو په تبلیغاتو کې یې پنځمې پریکړې چې د امان الله خان په باب یې کړې ډیر ستر ځاى نیولى دى (٦١) .

## ۱۵ - د بیطرفۍ دوهمه لویه جرگه :

د ۱۹۳۹ کال په سپتمبر کې په نړۍ کې د دوهم نړیوال جنګ لمبې بلې شوې (۶۲) ډیر هیوادونه پکې خوړین شول او د آلمان او ایتالیې ترماتې وروسته متحدینو له افغانستان نه وغوښتل چې جرمني او ایتالوي مستخدمین او کار کوونکي دوی ته وسپاري خو د افغانستان حکومت یو ځل بیا د ۱۹٤۱ کال په جولای کې لویه جرگه راوغوښته چې په دې جنګ کې یې د افغانستان عنعنوي بیطرفي اعلان کړه (۶۳) او له هیواد ځخه یې د آلمان او ایتالیې د متخصصینو وتل په دې شرط ومنل چې رك روغ خپلو هیوادونو ته ورسول شي او د تلو په وخت کې به په لار کې هیڅ راز ستونزې نه ورته پیښیږي ، سفارتونه به برحال وي سیاسي کسان به نه ایستل کیږي او د نړیوالو دپلوماتیکو مقرراتو له مخې به همدلته استوګن وي ، لویې جرگې دا پریکړه تصویب او حکومت عملي کړه او په افغانستان کې د جرمني اوایتالیې مستخدمین د برتانوي هند له لارې خپلو هیوادونو ته رك روغ وسپارل شول (٦٤) .

د دې جرگې پریکړه هم ډیره مهمه وه او په نړیوال خونړي جنګ کې د گران هیواد افغانستان لمن له وینو او اور ځخه وساتله شوه .

## ۱۶ - د ۱۳۳٤ کال لویه جرگه :

تر دې وخته د افغانستان په گاونډ کې حالاتو ژور تغییر کړی و ، انگریزانو د هند نیمه وچه خوشې کړې وه او دلته د هندوستان او پاکستان په نامه دوه بیل هیوادونه جوړ شوي وو ، د افغانستان ملت

غوښتل چې له افغانستان نه د ډیورنډ د کرښې په وسیله بیلې شوې سیمې بیرته له افغانستان سره یوځای او د افغانستان تاریخي صورت تکمیل شي خو د دې ترڅنګ د صوبه سرحد د پښتنو سیاسي لیډر خان عبدالغفار خان چې د هند ترویش وړاندې د واحد هند پر پاتې کیدو ټینګار کاوه د هند ترویش وروسته یې له پاکستان نه د پښتنو بیلتون او ځانګړې هیواد غوښت او له همدې سره د پښتونستان موضوع رامنځ ته شوه ، د افغانستان حکومتونو ته هم چې د ملت له خدمت نه عاجز وو دا مبهم غږ په زړه پورې و او د ملت توجه یې ورته جلبولای شوه خو تر ټولو دا غږ د روس لپاره خوندور و ځکه په دې اتې باندې د راګیډلو له لارې یې په افغانستان کې ژوره رخنه کولای شوه او خپل هغه زاړه هدف ته چې پتر کبیر د افغانستان د نیولو په برخه کې ټاکلی ورسیدلای شوای .

هو ! همداسې وشول ، د پاکستان تر جوړیدو وروسته د افغانستان او پاکستان ترمنځ سیاسي فضا خړه پړه شوه ، سوړ جنګ پیل شو او د سیاسي اړیکو شلیدلو زمینه مساعده شوه . افغانستان تر نه ځلي زیات له غرب نه د نظامي مرستې غوښتنه وکړه خو یوه غربي هیواد هم د پاکستان له کبله دا غوښتنه ونه منله او د افغانستان حکومت له مجبوریته روسانو ته مخ واړاوه ، هغوی داسې ورځې ته شنه ناست وو او دا غوښتنه یې په مینه قبوله کړه (٦٥) .

دا وخت سردار محمد داؤد د افغانستان صدراعظم و ، د ١٣٣٤ کال د لړم په ٢٢ ( د ١٩٥٥ نوامبر ) یې لویه جرګه راوغوښته ، د دې لویې جرګې په پریکړو کې د پښتنو د موضوع ملاتړ او د حساسو حالاتو په بناء د افغانستان نظامي پیاوړتیا شامله وه (٦٦) او د همدې پریکړې په لاسوند د افغانستان حکومت له روسیې سره د نظامي پیرودنو تړون وکړ او ځوانان یې د نظامي زده کړې لپاره روسیې ته ولیږل .

## ۱۷ - د اساسي قانون لويه جرګه :

د ۱۹٦٤ کال په سپتمبر کې په کابل کې يوه لويه جرګه جوړه شوه او د افغانستان لپاره يې يو داسې نوی اساسي قانون تصويب کړ چې خلکو ته يې د اساسي حقوقو د تأمين اوتضمين وعده ورکړه . د احزابو آزادي ، د مطبوعاتو آزادي او د شاهي کورنۍ له انحصار نه د حکومت را ايستل او د مقننه ، مجريه او قضائيه قواوو سره بيلول د دې قانون مهم ټکي وو . دې جرګې د ٤٠٠ تنو شا او خوا غړي درلودل او د سپتمبر په ۱۹ نيټه يې د نوي اساسي قانون متن تصويب کړ (٦٧)

دا لويه جرګه هم د کميت له اړخه لويه وه او دا چې يو نوی اساسي قانون يې تصويب کړ دا يې ښه کيفيت و ...

## ۱۸ - د جمهوريت لويه جرګه :

د ۱۹٦٤ کال تصويب شوي اساسي قانون په خاص ډول د وخت د پاچا تربور محمد داؤد خان د قدرت له قانوني نيولو نه محروم کړ او په دې توګه د دوی کورنۍ شخړې او خوابدۍ د داسې ژورو عقدو سبب شوې چې داؤد خان اړ شو د قدرت ترلاسه کولو لپاره د کودتا لاره غوره کړي او د کودتا ملګري يې هم هغه کسان وټاکل چې د روس د خلق - پرچم غړي او يا د روس مستقيم ايجنټان وو . د ۱۳۵۲ کال د چونګاښ جمهوري کودتا د همدې کسانو په لاس ترسره شوه او د دموکراسۍ لسيزې ته يې خاتمه ورکړه .

داؤد خان د ۱۳۵۵ کال ترسلواغې پورې ( د ۱۹۷۷ فرورۍ ) د دولت د رئيس په حيث کار وکړ خو همدا وخت يې وغوښتل چې خپل حکومت ته قانوني بڼه ورکړي . اساسي قانون نافذ او د دولت د اداري لپاره

د « سبها » جرگه به په کليو کې جوړېده او د کلي وړې پېښې به پکې فيصله کيدلې ، دا جرگه به په هر لوی کلي کې جوړېده او ځانگړی ځای او خونه ورته ټاکل شوي وو چې ټول خلك به بې له استثنی پکی راغونديدل او خپلې شخړې او دعوې دنگلې به يې پکې فيصله کولی ، له ځينې نخښو نه ښکاري چې ښځو به هم برخه پکې درلوده . دې جرگو ته زموږ اوسنی کليوالي جرگې ډيرې ورته دي (۲) .

« سميتي » هم يو ډول قومي جرگه وه مگر د « سبها » غوندې د ملت ټول خلك نشوای پکې راغونډيدلای ، بلکه دا مجلس به خاص د قوم دريشيانو (شاعران او فکري لارښوونکي) نجباوو ، مخورو او لويو کسانو چې په خپله پاچا به هم گډون پکې کاوه . او زيمر ( Ziumer ) وايی چې پاچا به هم په « سميتي » جرگه کې ټاکل کيده خو د ريگويدا يوه سندره ښيی چې د پاچا ټاکل به د دواړو جرگو په خوښه وو ، نو ځکه په دې سرود کې لولو :

« ټولو خلکو ته په پاچاهی ټاکلی يې ! » (۳) .

د « سبها » او « سميتي » دواړې جرگې د آريانا په ويدی دوره کې موجودې وی او د محققينو په قول د دې دورې زوړ عمر درې زره قبل الميلاد زمانې ته رسيږي (٤) چې له اوس نه د پنځو زرو کلونو شا او خوا زمانې واړن لري او دا نو هغه وخت دی چې په دنيا کې نه د ارسطو « ښه حکومت » منځ ته راغلی و ، نه د نړۍ « پارلمانونو » سترگې پرانستې وی او نه د ملي ارادې او ادارې د تعميل کومه بله رده او کرښه په نړۍ موجوده وه (٥) .

زموږ د ملي تاريخ مطالعه څرگندوي چې په دې ډول جرگو کې به د ژوند ټولې چارې تربحث او څیړنې لاندې نيول کيدی . محلي او ملي شخړې ، پردي تيري او يرغلونه ، اجتماعي او حتی ديني او مذهبي

جمهوررئیس وټاکل شي . دې درانه کار بیا هم د لویې جرګې راغونډیدل غوښتل ، او همدا وو چې د سلواغې په لسمه نیټه په کابل کې یوه لویه جرګه پرانستله شوه . د دې جرګې انتخابي وکیلانو هم تر ډیره حده انتصابي بڼه درلوده ، د داؤد خان د ملي غورځنګ نومي ګوند غړي ورته ټاکل کیدل او انتصابي غړي یې هم د پخواني تعامل په خلاف تر ډیره حده د سپین ږیرو او مخورو پرځای هغه ځوانان او ګوندي فعالین وو چې د لویې جرګې ورتیا یې نه درلوده او د عنعنوي تعامل له مخې لویې جرګې ته د راتلو د شرایطو درلودونکي نه وو .

د دې جرګې غونډو ( ۱۶ ) ورځې دوام وکړ او په شپاړسمه ورځ د جمهور رئیس د ټاکل کیدو موقع راورسیده او په پای کې محمد داؤد د افغانستان د جمهور رئیس په توګه ومنل شو (۶۸) .

دې جرګې د کمیت له پلوه د ( ۵۰۰ ) تنو شا او خوا غړي درلودل خو د کیفیت له پلوه ځکه درنه نه وه چې انتخابي او انتصابي دواړې برخې غړي یې تر ډیره حده د لویې جرګې د غړیتوب د شرایطو درلودونکي نه وو .

## د مجاهدینو جرګې :

د ۱۳۵۷ کال د غوایي د خونړۍ کودتا له کیدلو سره زموږ په هیواد کې د روسیې ښکیلاک مزدور حکومت رامنځ ته شو او یو ځل بیا د افغانستان مسلمانو خلکو د یوه عمومي پاڅون تیاری پیل کړ ؛ د هیواد په ګوټ ګوټ کې محلي جرګې وشوې او جهاد پیل شو ، په پیښور کې د جهاد د مشرانو ګډې شوراوې جوړې شوې . حتی د ۱۳۵۸ کال د مرغومي په ۱۵ نیټه ( د ۱۹۸۰ جنورۍ ) په پیښور کې یوه ممثله لویه جرګه جوړه شوه او د سلواغې تر ۳۰ نیټې پورې یې غونډو دوام وکړ

چې د هیواد د ټولو ولایاتو او ګوندونو استازي ورته راغلي وو (٦٩) خو دې جرګې د دروني ګډوډیو او د ګوندیو له امله عملي ګام وانه خیستلی شو او د غونډو له ختمیدو سره یې نتایج او دست آوردونه هم ختم شول .

تردې وروسته د مجاهدینو او هم د رژیم په ساحو کې تش په نامه ګڼې جرګې جوړې شوې خو « ملي » رنګ یې له لاسه ورکړ او موږ نه شو کولای چې د ملي او لویو جرګو په لړۍ کې یې وشمیرو او په دې سربیره زموږ په هیواد کې په لسهاوو نورې لویې او وړې جرګې د تاریخ په بیلا بیلو پوړیو کې شوی چې دلته یې له یادولو او څیړنو څخه تیریږو او د جرګو د تاریخي څیړې په باب همدومره بحث کافي ګڼو .

## پایلیکونه :


١ - کُهزاد ، احمد علی : « تاریخ افغانستان » لومړی ټوک ، ١٢٥ مخ ، ( د افغانستان تاریخ ټولنه ) ، کابل ، ( ١٣٢١ کال )
٢ - همدا اخځ .
٣ یاد شوی کتاب ، ١٢٦ مخ .
٤ - ګزیده ، ریګویدا ، د داکتر سید محمد رضا جلالي نایني څیړنه او ژباړه ، سریزه ، ٤٩ مخ ، نقره ، تهران ، ١٣٦٧ .
٥ - د حکومت د تاریخي بڼو له لپاره وګوری د مهندس فرشید : مکتبها واحزاب سیاسی ، تهران ١٣٦١ .
٦ - کُهزاد ، احمد علی : « تاریخ افغانستان » دوهم ټوک ، ٢٥١ - ٢٥٢ مخونه ، د افغانستان تاریخ ټولنه ١٣٢٥
٧ - غبار ، میرغلام محمد ، افغانستان در مسیر تاریخ ، ٢٨١ مخ ایران ١٣٥٩ ش .

٨ - بينوا عبدالرؤف ، هوتکيها ، ١٦ مخ ، د افغانستان تاريخ ټولنه ، ١٣٣٥ ش .

٩ - هوتك ، محمد : پټه خزانه ، ٧٦ مخ د استاد حبيبی سريزه او سمون ، کابل ، ١٣٥٦ ش ( څلورم چاپ ) .

١٠ - همدا اثر .

١١ - د تفصيل لپاره وگورئ : رفيع ، حبيب الله ، ادبي ستوري ، دوهم ټوك ، ٨٣ - ٨٧ مخونه ، کابل ، ١٣٥٩ کال .

١٢ - پټه خزانه ، ٧٩ - ٨٠ مخونه .

١٣ - پټه خزانه ، ١٢٢ مخ .

١٤ - حبيبی ، عبدالحی : د افغانستان تاريخي پيښليك ، ١٥٢ مخ ، د بيهقی کتاب خپرولو مؤسسه ، ١٣٥٣ .

١٥ - پټه خزانه ، ٤٨ مخ .

١٦ - پټه خزانه ، ٤٨ مخ .

١٧ - هوتکيان ، ٤٣ مخ .

١٨ - هوتك : امان الله خان : د خپلواکۍ لمر څرك ، ٤٦ مخ ، ١٣٦٨ ، پيښور .

١٩ - هوتکيان ٤٥ مخ .

٢٠ - پټه خزانه ، ٨١ - ٨٢ مخونه ؛ د خپلواکۍ لمر څرك ، ٤٧ - ٤٨ مخونه .

٢١ - هوتکيان ، ٤٥ مخ .

٢٢ - فيض زاد ، محمد علم : جرگه های بزرگ ملي افغانستان ، ٢٩ مخ ، لاهور ، ١٣٦٨ .

٢٣ - د تفصيل لپاره وگورئ : د خپلواکۍ لمر څرك ؛ هوتکيان ؛ افغانستان د مسير تاريخ ؛ پټه خزانه او د دې دورې نور تاريخونه .

٢٤ - هوتکيان ٥٣ - ٥٦ مخونه .
٢٥ - همدا اثر ٥٥ - ٥٦ مخونه .
٢٦ - د پيښو تفصيل د همدې دورې په تاريخونو کې وګورئ !
٢٧ - حبيبی ، اروا ښاد پوهاند عبدالحی ، تاريخ مختصر افغانستان ٢٥٦ مخ ، دوهم چاپ ، سازمان مهاجرين مسلمان افغانستان ، ١٣٦٨ .
٢٨ - کُهزاد ، اروا ښاد استاد احمد علی ، رجال و رويدادهای تاريخی ، ٧٧ - ٧٨ مخونه ، تاريخ ټولنه .
٢٩ - د پيښو د تفصيل لپاره وګورئ : تاريخ مختصر افغانستان افغانستان در مسير تاريخ او د دې دورې نور آثار .
٣٠ - تفصيل د افغانستان د نولسمې پيړۍ په تاريخونو کې راغلی دی .
٣١ - افغانستان در مسير تاريخ ، ٥٤٨ - ٥٤٩ مخونه .
٣٢ - د دې ماتې جريان د ليدی سيل انګريزی ليکونکی په ياد داشتونو « شبخون افغان = د پښتنو يرغل » کې په ډير ښکلي او اعترافي ډول بيان شوی ، د دې کتاب پښتو او درې ژباړې په ١٣٣٩ کال په کابل کې خپرې شوی دي .
٣٣ - د افغانستان پيښليك ، ١٩٦ مخ .
٣٤ - ښاغلی فيض زاد په خپل کتاب «جرگه های بزرگ افغانستان» کې دا دواړې جرګې سره ګډې کړی دي ( و ګ : د نوموړي کتاب ٤٣ - ٤٦ مخونه ) .
٣٥ - آهنگ ، محمد کاظم ، رفيع ، حبيب الله : په افغانستان کې د ژورناليزم تاريخچه ، ٢٧ - ٢٨ مخونه ، تاريخ ټولنه ، کابل ، ١٣٥٦ .
٣٦ - رفيع ، حبيب الله : ژبپالنه ، ٤٧ - ٥٠ مخونه ، پښتو ټولنه ، ١٣٦١ ، کابل .
٣٧ - غبار ، ميرغلام محمد : افغانستان در مسير تاريخ ، ٦٢٥

- ٦٢٦ مخونه .
٣٨ - کُهزاد ، استاد احمد علی : « مسکوکات دوره‌ء اسلامی افغانستان » د افغانستان کالنی ١٣١٩ کال ، کابل .
٣٩ - پاکرای امیر محمد شریف : حکومت مؤقت هند در کابل ، تر ٧٤ مخ وروسته ، ١٣٦٨ کال ، کابل .
٤٠ - په افغانستان کې د ژورنالیزم تاریخچه ، ٨٢ - ٨٨ مخونه .
٤١ - افغانستان در مسیر تاریخ ، ٧٣٩ مخ ؛ د افغانستان پیښلیك ، ٢٢٨ مخ .
٤٢ - اخلاص ، عبدالخالق او رفیع ، حبیب الله ، د استقلال خلورمه جبهه ، د سریزې ١١ - ٣٧ مخونه ، ١٣٦٥ ، د امان کتاب خپرولو مؤسسه ، پیښور .
٤٣ - کشککی ، مولانا برهان الدین : نادر افغان ، ٢٠٥ - ٢١٢ مخونه ، ١٣١٠ هـ ش ، کابل .
٤٤ - د استقلال خلورمه جبهه ، ١٣٢ - ١٣٣ مخونه .
٤٥ - حبیبی ، پوهاند عبدالحی : جنبش مشروطیت در افغانستان سازمان مهاجرین مسلمان افغانستان ، ١٩٨٦ .
٤٦ - د افغانستان پیښلیك ، ٢٤٣ مخ .
٤٧ - رفیع ، حبیب الله : په افغانستان کې د قانون جوړونې شروع او نهضت ، قلمي نسخه .
٤٨ - د استقلال خلورمه جبهه ، ١٣٥ مخ .
٤٩ - د منگلو د بغاوت په اړه ارواښاد عبدالخالق اخلاص سیف الامان په نامه په ١١٢ مخونو کې یو منظوم کتاب لیکلی چې ټولې پیښې په تار تاریزه توگه پکې تشریح شوی ، د دې کتاب قلمي نسخه ښاغلي محمد هاشم زماني راسپارلې چې د کاتب الحروف له سریزې او

تشریحاتو سره د چاپ په انتظار دی .
٥٠ - کشککی ، مولانا برهان الدین : رویداد لویه جرگهء دارالسلطنة ، کابل ، ١٣٠٤ کال .
٥١ - همدا پورتنی اثر ، ٤٢٢ - ٤٦٠ مخونه .
٥٢ - د افغانستان پیښلیك ، ٢٥٧ مخ .
٥٣ - طلوع افغان ، ٧ کال ، ٧٠ گڼه ، د ١٣٧٠ د وري ٣٠ ، کندهار .
٥٤ - همدا پورتنی جریده او د همدي کال د امان افغان د وري د نهمي نیټي فوق العاده گڼه .
٥٥ - مهربان ، عبدالله : تاریخ جرگه های ملی در افغانستان ، ١٠١ مخ ، د افغانستان د دموکراتیك جمهوریت پلار وطنه جبهه ، ١٣٦١ .
٥٦ - جرگه های بزرگ ملی افغانستان ، ١٣٢ مخ .
٥٧ - هندی ، عزیز : زوال غازي ، ٤٥ - ٤٧ مخونه ، ١٩٣٤ م .
٥٨ - د افغانستان دولت : تردید شایعات باطلهء شاه مخلوع ، فیصلهء نمبر ٥ لویه جرگهء ١٣٠٩ افغانستان ومعرفی اعضاء وشرکاء وسامعین موقره ، ٨١ - ١١٦ مخونه ، د ١٣١٠ دوری لومړی نیټه ، کابل .
٥٩ - الحاج ننگیال ( ټولوونکی ) : اسناد تاریخی افغانستان ، ٤٢ مخ ، فرهنگ جهاد ، ١٣٦٦ .
٦٠ - د افغانستان پیښلیك ، ٢٦٥ مخ .
٦١ - وگوریځ : تردید شایعات باطلهء شاه مخلوع .
٦٢ - محمود مهرداد : فرهنگ جدید سیاسی ، ٢٦٣ مخ ، ایران ، ١٣٦٣ .
٦٣ - د افغانستان پیښلیك ، ٢٨٥ مخ .
٦٤ - چکنوری ، سناتور غلام نبی : « لویه جرگه » خپلواکي ، دوهم کال ، څلورمه گڼه ، ٤٤ مخ ، د ١٣٦٦ تله - لیندۍ .
٦٥ - استاد پژواك لیکوال ته ورکړی معلومات .

٦٦ - حق شناس ، داکتر ش . ن : د سایس وجنایات روس در افغانستان ، ۹۹ مخ ، تهران ، ۱۳٦۳ .

٦۷ - کشککی ، صباح الدین ، دهه، قانون اساسی ، ۳۲ - ۳٤ مخونه ، د افغانستان د جهاد ثقافتی شوری ، ۱۳٦٥ .

٦۸ - جمهوری پلوشه ، دوه میاشتنی مجله ، د ۱۳٥٥ د سلواغې او کب گڼه ، لومړی مخ .

٦۹ - د تفصیل لپاره وګورئ : وجدی ، عبدالجلیل : په افغانستان کې د عنعنوي جرګو نن او پرون ، ۲۱۸ - ۲٥٦ مخونه ، د امان کتاب خپرولو مؤسسه ، ۱۳٥٦ ، پیښور .

( ۲ )

څپرکی

# د جرګو ټولنیز دریځ

تیر څپرکي موږ ته په ګران افغانستان کې د جرګو ځیره راوښوده او ځرګنده شوه چې زموږ جرګې که د کمیت په لحاظ لویې وې یا وړې خو د کیفیت په لحاظ یې اهداف او اغراض لوی او مهم وو ، لکه :
د هیواد آزادي ، د حکومت د ګوډاګي کیدو په صورت کې د ملي ارادی تنظیم ، د هیواد د مشر ټاکل ، د هیواد د داخلي او خارجي پالیسۍ تعیینول او د هیواد د آبادۍاو پرمختګ . د میرویس نیکه ( لومړی او دوهمه جرګه ) د مجاهدینو ( پنځمه ، اتمه او نولسمه جرګه ) د هیواد د آزادۍد بیا ترلاسه کولو لپاره وې چې ټولی کامیابی شوې . د جنګ او مبارزې ښه رهبري یې وکړه او د خارجی ځواکونو نه یې د هیواد خپلواکي ترلاسه کړه . د میرویس نیکه جرګه ( دریمه جرګه ) او د شیر

سُرخ د مزار جرگه ( څلورمه جرگه ) د هیواد د مشر ټاکنې جرگې وې چې مشران یې وټاکل او د قدرت خلا یې ډکه کړه . د اتحاد مشرقی جرگه ( اوه لسمه جرگه ) د آزادۍ د ساتنې لپاره وه چې ملت یې د خپلې آزادۍ ساتلو ته ځار و او پر دې چار مکلف کړ . د بیطرفۍ دوې جرگې ( نهمه او پنځلسمه جرگه ) د نړیوال جنگ له اور نه د افغانستان ژغورل وو چې هم یې افغانستان له دې اوره وژغوره او هم یې د دې هیوادونو هغه کسان چې د افغانستان لپاره یې خدمت کړی و په نړیوال تضمین خپلو هیوادونو ته روغ رمټ ورسول . یوولسمه ، دوولسمه ، اوولسمه او اتلسمه جرگه د اساسي قانون د منلو جرگې وې چې د دوخت له غوښتنو سره سم یې قوانین پاس او دولت او اداري ته یې قانوني بنه وروبخښله ، د نورو جرگو پریکړې هم عملي شوې او د افغانستان مهمې ملي چارې یې د اولس له ارادې سره سمې کړې .

افغاني عنعنه یې جرگو د بیروکراسۍ طومارونه نه درلودل او پر کاغذي لیکنو یې تکیه نه وه ، بلکه د دې جرگو ژبنۍ پریکړې د کاڼې کرښې وې او عملي کیدل یې حتمي او ضروري وو خو ورو - ورو د حکومت بیروکراسۍ په جرگو کې هم رخنه وکړه نوځکه یې کله - کله پریکړې د کاغذ پرمخ پاتې شوې .

افغاني جرگو په یو ځایي د مقننه ، قضائیه او مجربه قواوو وظیفه درلوده (۱) او هم ځینې څیړونکو د مؤسسانو له مجلس سره ورته بللې دي (۲) خو حقیقت دا دی چې لویه جرگه یوه ځانگړې آریایي پدیده ده چې افغانانو ته په میراث رارسیدلې او یوه مستقله افغاني نمونه گرځیدلې چې په نورو هیوادونو کې یې کټ مټ ساری نه شو موندلای (۳) نو له همدې کبله دا د افغاني ټولنې د نظم او اداري تر ټولو لوړه مرجع گڼلای شو چې د ملت ټولې ښې او بدې ټاکلې شي او په داسې

حساسو وختونو کې چې نه حکومت وي او نه بله کومه واکمنه مرجع د ملت د سرنوشت او برخليك په باب فيصله کوي نوځکه لويه جرگه يوه عاجله رهبري ده ، کامله رهبري ده ، واکمنه رهبري ده او د ملت د ارادې ښکارندويه او څرگندويه رهبري ده .

د لويې جرگې غړي که ظاهراً د افرادو بڼه لري خو بالقوه هر غړی د يوه قوم او يوې سيمې حيثيت لري او که لويې جرگې ته په واقعاً ملي ډول غړي وټاکل شي يقيناً چې لويه جرگه د ټول ملت د غونډې بڼه غوره کوي او تصميم يې د ټول ملت د تصميم حيثيت لري او هغه شخړې چې پاچايان يې په لکونو لښکرو نشي غوځولی لويه جرگه يې په محدودو غړو هوارولی شي .

د جرگې همدا اهميت او ارزښت و چې د افغانستان ملحد ، دين دښمن او هيواد پلوري کمونستان هم ورته متوجه شول او لکه څنگه يې چې په خپلو او خپلو شوروي بادارانو د شومو اهدافو لپاره ټول ديني او ملي ارزښتونه تر پښو لاندې کړي وو همداسې يې د لويې جرگې د توهين کولو او اهميت له منځه وړلو لپاره هم اقدام وکړ خصوصاً کله چې د دوی د پلار وطنې جبهې روسي ماډل بيخي رسوا او ناکام شو نو د ۱۳٦٤ کال د وري په ۳۱ نيټه ( د ۱۹۸٥ اپريل ) د شوروي را صادر شوي گوډاگي ببرك کارمل په کابل کې د لويې جرگې په نامه يوه غونډه وکړه چې د کميت په لحاظ يې ۱۷۹٦ کسان پکې کښينولي وو خو دا يو هم د اولس او خلکو نماينده گان نه وو ، زيات شمير يې د کمونست خرڅ شوي گوند غړي او نور يې له دې گوډاگي رژيم سره د تړليو اتحاديو غړي وو خو محدود کسان داسې پکې وو چې له خپلو سيمو نه د کمونست رژيم د ملاتړ په جُرم راځغلول شوي او په کابل کې يې د کمونستانو په سيوري کې ژوند کاوه خو په جرگه کې تر گڼون ورروسته

چارې به يې خېړلې او فيصله کولې ، لکه « کنيشکا » يا « لوی کوشانشاه » چې د ۱۵۰ ميلادي کال شا او خوا د بودايي دين اوم واسوميشره گندهاري په مشرۍ د بودايي ۵۰۰ تنه پوهانو لويه جرگه په پيښور کې جوړه کړه او د بودايي دين « هينه يانه » د کوچني مذهب پرځای يې « مهايانه » لوی مذهب غوره کړ (٦) .

په لرغوني افغانستان کې په سلهاوو لويې او وړې جرگې شوې چې مهمې پرېکړې يې کړی او ياد يې په تاريخ کې پاتې دی خو موږ دلته له زړو زمانو څخه تيرېږو او په معاصر افغانستان کې د څو مهمو لويو جرگو تاريخي څېره رابرسېره کوو او اهداف،لاس ته راتلنې ، پرېکړې او اغيزې يې څېړو .

تر هر څه وړاندې د دې يادول ضروري دي چې د لويې جرگې اهميت او لويوالی د کميت له اړخه نه دی ، بلکه د کيفيت په نظر ورته کتل کيږي ، د کميت په لحاظ پنځه کسه هم يوه جرگه ده چې فيصله يې منظوره او منلې ده او د همدې کيفي اعتبار په بنا د « پنځو کسو ته کښيناستل » محاوره د جرگې په معنی او د طرفينو د منلې وړ ده ، زموږ په تاريخ کې د کميت په لحاظ ډېرې وړې جرگې وې چې ډير لوی او تاريخساز کارونه او اقدامونه يې کړي خو په مقابل کې له ډيرو گڼو کسانو نه جوړې شوې جرگې شته چې ډير واړه او له ملي ارزښته لويدلي کارونه يې کړي دي .

د همدې ټکو په نظر کې نيولو سره د افغانستان د معاصر تاريخ يو شمېر لويې جرگې په بېلا بېل ډول څېړو او په تشکل او اهدافو يې رڼا اچوو :

خپلو سیمو ته له تلو سره ووژل شول او ملت د خپلي جعلي نماینده ګۍ غچ تري واخیست . څرنګه چې په دې جرګه کې د خلکو واقعي نماینده ګان نه وو نو په هغه کتاب کې چې کمونستانو د لویې جرګې په نامه چاپ کړی ، د دوی د نوملیك له خپرولو څخه ډډه شوې او یوازې د هغو څو تنو نومونه یې اخیستي چې په دې تش په نامه جرګه کې یې د روس په ملاتړ ویناوې کړې دي (٤) .

همدا راز نجیب چې روسانو تر ببرك ښه روزلی و د خپلې ژبنۍ نرمي پالیسۍ د پرتوګ لپاره بیا هم د لویې جرګې په نامه د ١٣٦٦ کال د لیندۍ په اتمه نیټه ( د ١٩٨٧ دسمبر ) د خپلو مزدورانو یوه غونډه جوړه کړه چې د دې غونډې غړي هم د مزدور ګوند او اتحادیو غړي وو او له ملت نه دومره په تجرید کې وو چې حتی د غونډې تالار هم د مجاهدینو په محاصره کې و او د راکټونو ګولۍ یې پرې واورولې حتی دا تش په نامه جرګه دومره پاشلې وه چې د مزدور ګوند غړو هم د تالار مخه کې یو د بل وینې وبهولې (٥) نوځکه د دې غونډې پریکړې هم د کمونستانو د نورو پریکړو غوندې بې نتیجې او بې پایښته وې او دا د کمونستانو یوه دسیسه وه چې د لویې جرګې تاریخي او ملي مؤسسه بدنامه او ناکامه کړي خو د افغانستان مسلمان ملت دوی ناکام او زبون کړل او د قدرت له څوکۍ نه یې د تیښتې لاره خوښه کړه اما متأسفانه د یوې لویې نړیوالې دسیسې له مخې په کابل کې په ١٣٧١ ( ١٩٩٢ ) کال د یوه ملي اسلامي حکومت پرځای یو داسې ائتلافي حکومت ټینګ شو چې کلیدي څوکۍ یې د کمونستانو او نژاد پالانو په لاس کې ولویدې او د افغانستان د ملت د هیلو په لاندې کولو سره یې بیا یوه غیرملي اداره جوړه کړه او د دې ادارې د ټینګښت لپاره یې د ١٣٧١ کال ( ١٩٩٢ ) په لیندۍ کې یوه جرګه هم جوړه کړه خو د خلکو د لا

غولولو لپاره یې د لویې جرگې پرځای د اهل حل وعقد د شوری نوم ورکړ خو په حقیقت کې دا هم یوه نمایشي شوری وه چې گڼ غړي یې د یوه گوند وو او د یوه گوندي حکومت د بقا لپاره یې په مصنوعي ډول راوستي وو او د ملت هیڅ ډول سیمه ییزه ، قومي او سیاسي نماینده گي یې نه کوله ، له همدې امله ائتلافي رژیم ونه کړای شول چې د دې جرگې د غړو مفصل نوملیك نشر کړي او د ملت نماینده گان یې وبولي (٦) .

په دې ترتیب موږ ویلای شو چې د لویې جرگې ټولنیز ارزښت په دې کې دی چې د افغاني ټولنې له عنعنه یې دموکراسۍ سره سم د هرې سیمې داسې کسان چې واقعاً اولس یې خپل نماینده وبولي پکې راغونډ کړای شي ، هغوی مخ ته پرتې ستونزې تربحث او څېړنې لاندې ونیسي او بیا د خپل هیواد د عیني او ذهني شرایطو په نظر کې نیولو سره داسې پریکړې وکړي چې د نظري پرځای عملي او د کاغذي پرځای تطبیقي وي او همداسې پریکړې کولای شي چې هیواد ، لکه څنگه چې پخوا څو څو ځل شوي له خطرناك حالت نه راوباسي او قانوني مسیر ته یې واچوي او که داسې ونه شي د زور او د تغلب حکومت ، نژادي او سیمه ییز حکومت ، یو گوندي او تحمیلي حکومت په هیڅ ډول نه چلیږي او لکه په تاریخ کې چې گورو په بد اوناوړه ډول را نسکوریږي .

## پایلیکونه :


١ - هوتکیان ، ٥١ مخ .

٢ - آقا بکف : خاطرات آقا بکف ، د داکتر حسین ابو ترابیان ژباړه ٧٣ مخ ، تهران ، ١٣٥٧ .

٣ - دهه‌ء قانون اساسی ، ٣٢ مخ .

٤ - لویه جرگه ، ١٣٦٤ ، کابل .

٥ - افغان جهاد ، د افغانستان د جهاد د ثقافتي شورى دري میاشتنۍ خپرونه ، دوهمه ګڼه ، د ۱۳٦٦ کال ورى - لیندۍ ، د پینبسلیك برخه .

٦ - د مجاهد جریدې د ۱۳۷۱ کال د مرغومي د ۲۸ ګڼې د ولایاتو او ګوندونو په شمیر یو جدول جوړ کړی چې ټول نماینده ګان یې ۹۸۳ ښودلي چې پکې یوازې ۳٦۲ تنه د جمعیت غړي دي ، د ننګرهار ولایت برخه نه ده پکې اخیستی او هم یې هغه نور غړي چې د رژیم له خوا پکې راغونډ شوي وو او تر ۵۰۰ تنو یې شمیر رسیده له دې احصائیې نه غورځولي دي تفصیل لپاره وګورئ : افغان جهاد ، شپږم کال ، دوهمه ګڼه ، د ۱۳۷۱ مرغومي - کب ، ۷۰ مخ .

( ۳ )

# څپرکی

# د جرګو قانوني پايه

د بشر د ژوندانه تکاملي پړاوونو ، ذهني ، فکري اوټولنيزې ودې ، د بشر د اداري لپاره د سياسي مؤسسو جوړښت او پيدايښت ورو - ورو په بشري ټولنو کې د حقوقو خيره روښانه کړه او د ې حقوقو د تأمين او تضمين لپاره د نړۍ په بيلا بيلو هيوادونو کې اساسي او مدني قوانينو سترګې وغړولی او د ټولنيز ژوند اډانه يې وټاکله . دولتونه ، پارلمانونه احزاب او ډلې هم د دې تکاملي بهير يوه برخه ده چې په ټولنو کې قانوني پايه ټينګوي او د ملتونو حقوق خوندي کوي .

په نړۍ کې کامياب حقوقي او قانوني نظامونه هغه دي چې د خپلو هيوادونو او ملتونو له غوښتنو ، اړتياوو او شرايطو سره رامنځ ته شوي وي او د تطبيق پراخه او ويړه ساحه ولري . انسان يو ټولنيز مخلوق دی

او د همدې ګڼو ټولنیزو رواني او مادي اړتیاوو له مخې یې له ډیرو لیرې او ناپیژندل شویو زمانو نه په تدریجي ډول ټولنه جوړه کړې او په ټولنه کې یې ژوند کړی ، له همدې امله فرد ټولنې ته دومره اړتیا لري ، لکه کب یې چې اوبو ته لري او له ټولنې نه د فرد بیلول د هغه له منځه وړلو مفهوم موندلی دی نو له دې کبله د دې اجتماعي نظم د ټینګښت لپاره حقوق ، حدود او قوانین ټاکل شوي دي (١) .

د حقوقو او قوانینو په ټاکلو کې د ملتونو تجربې درنه ونډه لري او تر ډیره حده یې تطبیق شویو عملیو ته د حقوقو او قوانینو بڼه ورکړې او په تکرار سره دا تجربې نورې هم پخې شوې او لازم ترمیمونه پکې شوي دي .

د نړۍ تاریخونه په دوو دورو ویشل کیږي : قبل التاریخي او تاریخي دوره خو د افغانستان په تاریخ کې د قبل التاریخ او تاریخي دورې ټکونه لا تراوسه په واضح او مشخص ډول ټاکل شوي نه دي ځکه موږ یوه بله دوره هم لرو چې په هغې کې خط لا منځ ته نه و راغلی خو د ادبیاتو پنډ - پنډ ذخایر چې په شفاهي ډول ایجاد شوي وو خلکو د حافظې له لارې له یوه نسل نه بل نسل ته لیږدول ، دا دوره د افغانستان په تاریخ کې ډیره اوږده ، غني او له هنګامو ډکه دوره وه چې ګڼ داستانونه ، اسطورې ، سرودونه ، کورنۍ ، رزمي چارې او نور پکې رامنځ ته شول چې خاطرې یې د خط ترایجاد وروسته ضبطې شوي او ترننه را پاتې دي ، د دې نالیکلې دورې خاطرې چې د « نیمه تاریخي دورې » ، « اسطوره یې دورې » یا « داستاني او رزمي دورې » نوم ورکولای شو ډیرې ژورې ، پیاوړې او اساسي وی (٢) .

د ویدی ادبیاتو پر ایجاد سربیره هغه حقوقي او قانوني تجربې چې موږ یې اوس افغاني نرخونه او کودونه بولو هم له همدې وخت نه

رانښلیدلي او د افغاني آريايي ټولنې د حقوقي او قانوني ژوند اډانه يې ټينګه کړې او ټولنيز مناسبات يې منظم کړي دي .

دې تجربو لا همهغه خپل شفاهي او غير کتبي خصوصيت ساتلی او سينه په سينه راليږديدلی دي . جرګه هم له دې تجربو نه يوه تجربه ده چې د تاريخ په اوږده واټن کې يې تکاملي مزل کړی او تر نن پورې يې له خپل بشپړ ارزښت سره ځان رارسولی دی .

په افغاني ټولنه کې د جرګو قانوني او حقوق پايې همهغه کودونه او نرخونه دي چې په دې ټولنه کې يې تاريخي وده کړې او په خپله جرګه هم د دې حقوقي او قانوني عنعنوي نظام يو جزء او برخه ده .

د همدې پخې قانوني او حقوقيېپايې درلودلو جرګه په افغاني ټولنه کې د يوې لوړې مرجع په حيث وړاندې کړی او د دې عيني او عملي قوانينو د تطبيق واك او صلاحيت يې ورسپارلی دی .

د جرګې پريکړې کاغذي نه ، بلکه عملي وي ځکه چې د اولس د مخورو او سترګورو کسانو د پيړيو – پيړيو تجربې يې مخې ته پرتې وی او همهغه تجربه شوی او عملي شوې تجربې يو ځل بيا د خلکو په منځ کې پلی کوي .

مثلاً په ټولنه کې شوې پيښې ، جرايم او شخړې تاريخي سوابق لري او د هغې د حل لپاره تجربه شوی نسخې په شفاهي ډول را پاتی دي او جرګه د هغې له مخې پريکړه کوي او خپل قرار صادروي .

جرګه د خپلو پريکړو د تطبيق او عملي کولو لپاره په کاغذ ليکنې نه کوي ، لاسليکونه او د ګوتو نخښې نه اخلي ، بلکه تر پريکړې وړاندې له جانبينو نه درانه مادي تضمينونه ترلاسه کوي او دواړه اړخونه مکلفوي چې په اخلاقي توګه دا پريکړې ومني او که احياناً غاړه ترې وغړوله شي پر ټاکل شوی سزا سربيره د پريکړې د نه منلو پړه او ورسره

نوره ترلې سزا هم پرې راځي .

په افغاني نرخونو کې خون يوازې د قتل او وژلو معنی نه لري ، بلکه ډير داسې کارونه چې انسان معناً او شکلاً بدرنګوي د قانوني او حقوقي څيړنې په وخت کې په خون شميرل کيږي او مقابل لوری به د بشپړ خون په اندازه تاوان زغمي . مثلاً که څوك د يوه سړي دواړه سترګې وباسي د پوره خون پور پرې راځي ، همدا راز غوږونه ، ژبه ، او شونډې غوڅول ، يا د مخې غاښونه ماتول هر يو د يوه خون پور لري ، که دواړه لاسونه له بندونو نه غوڅ کړای شي د يوه خون پور لري ، له بند نه غوڅې شوې پښې هم همداسې دي خو که يوه پښه يا يو لاس له ولي او ورون نه غوڅ کړای شي هر يو د يوه خون پور لري او که له بند نه يو لاس يا يوه پښه غوڅ شي په نيم خون شميرل کيږي په همدې ترتيب ټول جرايم دړواخلئ (۳) .

دا قوانين او حقوقي تعاملات په کلي توګه د زمانو د تجربو په اوږدو کې رامنځ ته شوي چې جزيي توپيرونه يې د سيمو او ځايونو تابع دي او له خپل ټول جامعيت سره په ناليکلی توګه خوله په خوله له يوه نسل نه بل نسل ته راليږدي او لکه څنګه چې اولسي سندرې د اولس د ادبي تجربو په توګه خوله په خوله راليږدي همداسې دا قانوني او حقوقي تعاملات د اولس د اجتماعي او حقوقي تجربو په حيث را انتقاليږي .

په افغاني ټولنه کې د دې حقوقي او قانوني کودونو موجوديت دومره ارزښتمن دی چې د تاريخ په اوږدو کې يې په هيواد کې د کمزورو حکومتونو او حتی د بې حکومتۍ په دوره کې هم د ټولنې امنيت ، نظم او دسپلين خوندي ساتلی او د اولس حقوقي او قانوني ارزښتونه يې خوندي کړي دي ، دا کودونه او نرخونه همدا اوس هم زموږ پر ټولنه حاکم دي او د اوږدو کلونو له مسلطو ګډوډيو او د ګڼو بهرنيو او کورنيو

دښمنانو له توطئو او تباه کوونکو عملیاتو سره - سره یې په عمومي توګه د هیواد وحدت او د ملت ذات البیني مناسبات خوندي ساتلي دي .

په نتیجه کې ویلای شو چې جرګه په افغاني ټولنه کې ژوره قانوني پایه لري او زموږ د ټولو اجتماعي ګډوډیو د له منځه وړلو او د ستونزو د حل یوازینۍ مجربه نسخه همدا جرګه ده او تر څو چې ملي او بین المللي جوامع د جرګې امن پالې لمنې ته پناه ور نه وړي ترهغې به بله هیڅ نسخه کامیابه نه شي ، بلکه د پردو نسخو په رامنځ ته کولو اوتطبیقولو سره به زموږ ستونزې او کړاوونه لا پسې زیات او دوامدار شي او د یوه ناولي ناسور بڼه به غوره کړي .

د تاریخ په اوږدو کې د افغاني ټولنې او افرادو متقابلو اغیزو د جرګې داسې نتیجې پلې کړی دي چې ډیر ژر یې قانوني پایه موندلې او په حکمي ډول عملي شوی دي .

## پایلیکونه :


۱ - محمد عالیخانی ، داکتر : حقوق اساسی ، ۱۰ مخ ، ایران ، تهران ، ۱۳۷۳ ، د ستان له خپرونو څخه .

۲ - کُهزاد ، ارواښاد استاد احمد علی : افغانستان در پرتو تاریخ ۲۲ مخ ، د کتاب چاپولو مؤسسه ، ۱۳٤٦ ، کابل .

۳ - د تفصیل لپاره وګورئ : پژواك ، استاد عبدالرحمن ، « تعاملات حقوقیه وجزائیهٔ ملی » سالنامهٔ کابل ، ۱۳۱۸ ، له ۳٤۲ - ۳٥۸ مخونو پورې .

( ٤ )

څپرکی

# د جرګو رواني اغیزه

انسان د خپل عقل او شعور له امله یو داسې مخلوق دی چې ګڼ معنوي اړخونه لري او ګڼې رواني ځانګړنې خدای (ج) پرې لورولی دي ، له دې سره انسان یو ټولنیز او اجتماعي مخلوق هم دی نو د خپل ژوند له آغاز سره یې د انساني ټولنې بنسټ هم ایښی دی . د فرد او ټولنې متقابلو اغیزو او مناسباتو انساني ټولنې ته په کل کې یوه خاصه روحیه وربخښلې او د انسان توکم د بیلا بیلو ملتونو د ویش له مخې هر ملت د ځانګړی ملي روحی خاوند شوی او د خپلې جغرافیې ، خپل کلتور ، خپلو ګټو او خپل تاریخ په غیر کې یې د خپلې ملي روحیې خپل رنګ ساتلی دی .

د یوه ملت د ملي روحیې په ځانګړی کولو او پیاوړي کولو کې د کلتور لوی لاس دی چې د دې ملت د تاریخ په اوږدو کې شکل نیسي ، خپله ځانګړې بڼه تشبیتوي او خپلې ټولنې ته ځانګړی رواني تشخص ورکوي .

افغاني ټولنه چې د خپل ملي تاریخ په اوږده بهیر کې قالب ښندي شوی او د خپلو افرادو د اوږدو تجربو په رڼا کې یې یو ملي کلتور رامنځ ته شوی د یوې خاصې ملي روحیې او ملي تشخص خاونده ده او ځانګړی خصایص او اوصاف لري .

له همدې امله افغاني ټولنپوهنه او د افغانستان د خلکو د ټولنیزو ځانګړنو او صفاتو څېړنه د تاریخ ، جغرافیې ، اقتصاد ، نژادونو ، ژبو ، عقیدو او د دې ټولنې د اوسیدونکو د اجتماعي دریځونو او روحي مسلکونو په نظر کې نیولو سره او د دې ټولنې د پېژندګلوی پاخه بنسټونه ژورو ، دقیقو او عمیقو څېړنو ته اړه لري او دا په خپله دومره پراخه او ویړ بحثونه دي چې د افغانستان « چې د مدنیتونو او فرهنګونو څلور لارې دی » د څلور زره کلن تاریخ په اوږدو کې اوږدو او پلنو څېړنو ته ضرورت لري او بیا هلته کیدای شي چې د دې هیواد د اوسیدونکو لپاره د هضم وړ سیاسي لاره وټاکله شي (۱) .

د افغاني کلتور یوه مهمه برخه هغه افغاني کودونه او نرخونه هم دي چې زموږ د ټولنې د افرادو اړتیاوو او غوښتنو رامنځ ته کړي او د دوی له ټولنیزو مناسباتو ، فرهنګي اړیکو ، اقتصادي اقتضاآتو او اجتماعي روحیې څخه زیږېدلي دي او د دې په لړ کې مو ، لکه څنګه چې مخکې وویل یوه هم جرګه ده چې پر افغاني ټولنه یې خپله ژوره، رواني اغیزه ساتلې او د تاریخ په اوږدو کې یې مثبت نتایج ورکړي او د هیواد لپاره یې د نجات د فرشتې بڼه غوره کړې ده .

## د میرویس نیکه لویې جرګې :

له شپاړسمې تر اتلسمې میلادي پیړۍ پورې په افغانستان کې مرکزي او محلي حکومتونه ړنګ او افغانستان د پردیو یرغلګرو ترمنځ وویشل شو ، په ماوراء النهر کې په ۱۵۰۰ میلادي کال کې شیبانیانو ، په ایرآن کې په ۱۵۰۲ میلادي کال کې صفویانو او په هندوستان کې په ۱۵۲۵ کال کې بابریانو نوي دولتونه جوړ کړل او دې درې واړو دولتونو د افغانستان له کورنۍ سیاسي کمزورۍ نه په استفادې سره د افغانستان بیلا بیلو سیمو ته لاسونه رااوږده کړل ، د افغانستان شمالي سیمې شیبانیانو ، غربي سیمې صفویانو او شرقي سیمې د هند کورګانیانو لاندې کړې او افغانستان تقریباً دوه نیمې پیړۍ د تجزیې په حال کې پاتې شو (۷) .

صفویانو په ۱۷۰۲ م کال کې د ګرګین په نامه یو خونخور بیګلر بیګی ( حاکم ) کندهار ته راولیږه چې په خلکو یې بې ساري ظلمونه پیل کړل او د وحشت او دهشت دوره یې رامنځ ته کړه (۸) . دې حالت په آزادۍ مین افغانان ځورول او هڅول یې چې یوه چاره یې وکړي ، په دې کسانو کې میرویس هوتکي چې ظاهراً په تجارت بوخت و ، د یوې اساسي چارې په فکر کې و ، څلور ځله په اصفهان کې د شاه حسین صفوي دربار ته ورغی او د ګرګین د ظلمونو نه یې شکایت ورته وکړ او په څلورم ځل :

میرخان ویل :

ای حسین پاچـا وګوره
حال د حاکم او رعایا وګوره

ګرګ دې ایله کړ په رمه سو شبان
جور وستم کاندی بیحد ګرګین خان

پر افغاني ټولنه د جرګې همدا رواني اغیزه وه چې افغاني ټولنه یې د نړۍ تر ټولو هیوادونو وړاندې دموکراسی او د ملي حکومت نعمت ته ورسوله . میرویس نیکه وکړای شول چې د جرګو په سیوري کې په ۱۷۰۷ م کال د افغانستان په یوه برخه کې ملي حکومت جوړ کړي (۲) سره له دې چې نړۍ ته ملي حکومت تر دې نیږې ۸۲ کاله وروسته په ۱۷۸۹ م کال د فرانسې لوی اوښتون ورویاخښه (۳) .

په دې توګه په ټینګه ویلای شو چې د افغاني ټولنې د سیاسي او ملي شعور د پروسې په ګړندي کولو کې لویه جرګه یوه لویه وسیله وه او جرګه زموږ پر ټولنه ژوره او تاریخي رواني اغیزه لري او دا زموږ د ملت د ملي روحیې د پیاوړتیا او د ملي ارادی د اظهار یوه معقوله او مجربه وسیله ده او زموږ د ملت په اروا کې یې داسې نفوذ کړی چې نه منل یې د ملي جُرم معادل او انډول دي .

موږ چې په خپل تاریخ کې سفر وکړو نو زموږ ستونزې هغه وخت زیاتې او حادی شوی چې د جرګې اصل شا ته اچول شوی او د واك وړیو یا د نورو په لومو ټړلو واکمنانو د « ملي سلا » پرځای د پردو له وسلې نه کار اخیستی دی ، زموږ موجوده ستونزې د همداسې یوه حالت مولود دي ، روسانو غوښتل چې په افغانستان کې د جرګو پرځای د خپلو ګوډاګیانو په وسیله د خپلو کمونستي تجربو په نتیجه کې ترلاسه شوی شورایي سیستم پلی کړي خو د افغانستان خلکو په قاطعیت رد کړ او په ملي قیام یې مقابله ورسره وکړه خو روسان او کمونستان مجبور شول چې بیرته جرګې ته رجوع وکړي خو د واقعاً ملي جرګې د جوړولو وخت او شرایط یې له لاسه ورکړي وو ، همهغه و چې نتیجه یې سقوط او رسوایی شوه .

د کمونستانو ترسقوط وروسته د کابل ائتلافي حکومت چې د

کمونستانو په مرسته جوړ شوی و او ظاهراً یې یو اسلامي روپوش درلود ، د خپل تظاهر د ساتلو لپاره د اهل حل وعقد د شورى پردي او ناآشنا ماډل ته لاس وغځاوه او د ۱۹۹۲ کال په دسمبر کې یې په دې نامه یوه غونډه جوړه کړه (٤) خو په عمل کې یې دله تش په نامه جرګو سره کوم توپیر نه درلود او لکه څنګه چې هغه ملت ردې کړې وې همداسې یې دا تش په نوم شورى هم رده او تحریم کړه .

افغاني جرګو ته د رواني اغیز ترڅنګ کله - کله روحاني اغیز هم حاصل وي چې دا یې پر ټولنه رواني اغیز نور هم زیاتوي ، د لویانو او ولیانو زیارتونه د مسلمانانو لپاره مقدس او د درناوی وړ مراکز دي ، د همدې تقدس له امله کله - کله دا هڅه هم شوی چې جرګې د مشهورو زیارتونو په محوطو کې راوبللی شي ، لکه د کندهار د شیر سُرخ د مزار جرګه ، د کابل د مجاهدینو هغه جرګه چې د کابل د عاشقانو او عارفانو په زیات کې یې کړې وه ، یا هم د اتحاد مترقي حرکت [illegible] صاحب په زیارت کې شوی وه (٥) .

په نتیجه کې ویلای شو چې جرګه د افغاني ټولنې د ملي تفاهم یوازینۍ مجربه نسخه ده ، زموږ پر ملت اوټولنه ژور رواني او روحاني اغیز لري او زموږ د سیاسي ژوند ټولې غوټې د جرګې پیاوړې ګوتې پرانستلی شي :

د لمانځه ترقضا ګرانه دا قضا ده
چې قضا شي د ځلورو مصلحت (٦)

## پایلیکونه :


۱ - حبیبی ، علامه عبدالحی : جنبش مشروطیت در افغانستان ، ۱۸۹ مخ ، ۱۹۹۵ ، د سازمان مهاجرین مسلمان افغانستان خپرونه .

Serise No: 85

# Psychological and Social Values of Afghani Jirgas (Assemblies)

By

Habibullah Rafi

Published

By

The Writers Union of Free Afghanistan (WUFA)

Peshawar 1995-
Copies 2000-

٢ - وګورئ د همدی اثر د لومړي څپرکي دريمه جرګه .
٣ - فرهنگ جديد سياسي ، ٢١ مخ .
٤ - تفصيل د افغان جهاد د ١٣٧١ کال د مرغومي - کب په ګڼه کې وګورئ !
٥ - د تفصيل لپاره وګورئ د دې اثر لومړی څپرکی ؛ ٤ ، ٥ ، ١٠ نومره جرګی .
٦ - خوشحال خان خټک : د خوشحال خټک کليات ، دوهم ټوک ، ١٣ مخ د افغانستان د علومو اکيډمی ، ١٣٦٩ .



موږ له طاقت نسته چې کړو په زياتي
صبر پر ظلم د ظالم ارمني

دا خلورم وار دی راځم سلطانه
عرض د ظالم د لاسه کړم سلطانه

که باچا نه کړي دادخواهي د مظلوم
ظالم حاکم کا ظلم ډیر په محکوم

جور چې ډیر سي سلطنت سي برباد
د ظلم قصر پوپنا بې بنیاد (۹)

خو صفوي پاچا په ډیره بې تفاوتۍ او بې کفایتۍ ځواب ورکړ :

پاچا ویل : زه نسوای کولای چاره
د گرگین خان ظلم و ستم د پاره

که یې معزول کړم کندهار نه پرېږدي
جور او ستم او خپل شعار نه پرېږدي

گرگین خو گرگ دی گرگ خو ظلم کوي
وینی تویوینه هم پسونه خیري

زه هم خایف یم چی به حه کرم گرگین
نامسلمان دی ، ارمني دی ، بې دین (۱۰)

په همدې ترڅ کې میرویس نیکه هندوستان ته ظاهراً یو تجارتي سفر وکړ خو سیاسي لیدنې کتنې یې هم وکړې او د هند سره ترلو پښتنو ملاتړ یې هم ترلاسه کړ چې په دې کې د ده ډیره مهمه کتنه د ختیځې پښتونخوا له لوی روحاني شخصیت فقیر جمیل بیگ سره لیده کاته دي چې هغه د بري زیری ورکړ او د ده د ملي مهم ملاتر یې وکړ (۱۱) .

میروس نیکه له صفوي باچا تر مایوسۍ وروسته د حج په دیني

سفر ولاړ خو بیا یې هم خپل سیاسي هدف او ملي مهم په مخ کې و ، د خدای (ج) د نازولي پیغمبر (ص) په پاك حرم کې یې د خپل اولس درد عرض کړ او د افغانانو فغان یې ورروساوه خو کله چې همهلته خوب یووړ نو زیری ورکړ شو :

چې میرویس هسې عرض کا حال د ظلم
هغه شپه مات سو توره ډال د ظلم

میرخان په خوب ولید صدیق اکبر
چې ورسره حضرت فاروق و عمر

وې یې : سپین ږیریه نور څه غم مه کوه
قوم دی خلاص سو کورت ماتم مه کوه

ولاړ سه خپل قوم ته دا زیری کړه ژر
چې د ظالم سو کم نقصان او ضرر

پښتون به خدای کا له ظالمه آزاد
نه به سي ننګه او ناموس یې برباد

خدای به دا قوم کا په رحم ودان
نوم به یې وینه مجاهد پر جهان

تل به د خدای په بنده ګۍ کې وي لوړ
خوك به یې نه کا سر په ټیټه ورځوړ

کلمه د خدای به وي جاري په افواه
ورکوي دوی به په دې لاره کې ساه (۱۲)

لوی نیکه تر دې وروسته حرم له علماوو مفتي ، قاضي او نورو باصلاحیته پوهانو سره وکتل ، په کندهار کې یې د ګرګین د ظلم حال ورته بیان کړ ، د صفوي پاچا بې تفاوتي یې وښوده او په نتیجه کې یې

د دوی فتوی په دې متن ترلاسه کړه :

« چــې د ظالم د ظلم دفـع روا
په تیر چې وي دې له اسلامه سوا » (١٣)

کله چې هیواد ته راستون شو ظلم نور هم انتهاء ته رسیدلی و او ده له مخورو سره جرګې او مرکې پیل کړې او د آزادۍ په فکر یې خلك راغونډول . ګرګین هم د ده له څخو نه خبر و ، د پلمې جوړولو په لټه کې و ، لومړۍ بهانه یې دا وه چې له میرویس نه یې د خپل زوی لپاره لور وغوښته او میرویس نیکه هم د موضوع د ښه حل او په « سلا » حل لپاره قومي مشرانو ته مراجعه وکړه او د لرغوني افغاني عنعنې په بنا یې لویه جرګه راوبلله .

## ١ - د میرویس نیکه لومړۍ جرګه :

میرویس نیکه د کندهار د زاړه ښار د غرب په شپږ میلۍ کې د « کوکران » په کلي کې د قوم مشران او لویان راوغوښتل ، د دې جرګې د غړو شمیر معلوم نه دی خو یقیناً چې د کمیت په لحاظ وړه وه ځکه د یوه ظالم او مستبد حاکم ترواك لاندې سیمه کې جوړیده او د اسرارو ساتل یې حتمي وو .

دا جرګه په ١٧٠٥ م کال جوړه شوه (١٤) د جرګې اصلي اجندا د ګرګین زوی ته د میرویس نیکه د لور ور ودولو موضوع وه خو ده نور ټول مسایل ورسره رامنځ ته کړل او د دې لپاره چې د دوی راتلونکی پروګرام وران نه شي داسې یې وټیبیله چې د میروس نیکه د لور پرځای یوه بله پیغله د ګرګین زوی ته ور واده کړي او دوی به په یوه پاخه هوډ د دښمن د اساسي چارې لپاره په کار بوخت وي ؛ میرویس نیکه په جرګه کې د اولس نیکو احساساتو او له میړانې ډك هوډ ډاډه او خوښ کړ او د

رحمان بابا په ديوان کې ترفال نيولو وروسته يې چې دا بيتونه پکې راوتلي وو :

د مکتوب غوندې په پټه خوله گويا يم
خاموشي زما تيرى کا تر غوغا زما

کښت د عشق په توده ځمکه امان چيږي
سمندر بويه چې زيست کا په صحرا زما (١٥)

د جرگې غړو ته وويل :

« د ظالمانو کار تمام دى ، اما اوس دستي خاموشي بهتره ده ، ټول به په پټه خوله دا کوښښ کړو چې ظالمان ورك سي ، چې مناسب وخت راسي نو به زه پرتاسې ږغ وکړم هغه وخت بايد ټول تيار اوسو اوظالمان له وطنه وباسو ! » (١٦) . ده زياته کړه : « موږ به اوس له تدبير نه کار اخلو او خپلې تورې به د گلابو تر پاڼو لاندې پټې ساتو » (١٧) .

د جرگې غړو د دې تدبير په تائيد کې په قرآن کريم ، توره او ډوډۍ (١٨) سوگند پورته کړ او وى ويل : « څوك چې د دې تړې مخالفت کوي ښځه دې پرې طلاقه وي ! » او په دې توگه يې ميرويس نيکه ته پوخ ډاډ ورکړ او هم د نيکه له خدمتگارانو نه يوه پيغله په داوطلبانه ډول حاضره شوه چې د دې ملي هدف په لاره کې قرباني ورکړي او د گرگين له زوى سره واده ته حاضره شي (١٩) .

د دې وړې خو پُرکيفه جرگې په نتيجه کې د اولس ترمنځ يوه معقوله او مدبرانه مفاهمه پيل شوه او هرچا بې له دې چې خبره افشاء شي او گرگين په ځان وپوهيږي د يوه منظم پاڅون تابيا کوله او د آزادۍ لپاره په کار بوخت وو .

## ٢ - د نيکه دوهمه لويه جرگه :

په ١٧٠٧ کال کې چې د گرگين ظلمونه ترپخوا هم پسې زيات شول

او له بلې خوا د لومړۍ لويې جرګې د پريکړو له مخې خلك ويښ شوي ، يو موټی شوي او د پاڅون لپاره چمتو شوي وو ، ميرويس نيکه يو ځل په « مانجه » کې چې د کندهار شمال ختيځ ته په ۳۰ کيلومترۍ کې واقع ده ، لويه جرګه راوبلله او د پاڅون يو کوټلی او عملي خو مدبرانه پروګرام يې جوړ کړ .

په دې جرګه کې د کندهار د بيلا بيلو قومونومشران راغونډ شوي وو چې د ريدي خان په محمود نامه کې يې د دوولسو مشرانو نومونه ثبت دي :

۱ - سيدال خان ناصر ، د ناصرو مشر او د هوتکي دورې معروف او نامتو سپه سالار .

۲ - بابو جان بابي ، د بابيانو مشر او روڼ فکره اديب .

۳ - ملا پير محمد مياجي ، لوی مجاهد او روحاني شخصيت .

٤ - بهادر خان اندړ ، د امير الامراء خطاب لرونکی او د شال ، روب او ديره جاتو فاتح .

٥ - يوسف خان هوتك د سيوری د هوتکو مشر .

٦ - عزيز خان نورزی ، د دلارام د نورزو مشر چې د دلارام په پهلوان مشهور و .

۷ - ګل خان بابر ، د بابرو د قبيلې مشر .

۸ - نورخان بړيڅی ، چې د شوراوك له خانانو څخه و .

۹ - نصرو خان الکوزی ، د جلدك د الکوزو مشر .

۱۰ - يحيی خان هوتك ، د ملي قايد ورور .

۱۱ - حاجی نور محمد خان مشهور په حاجی انګو نيکه ، د ميرويس نيکه وراره او بيا د هند په کورګاني دربار کې د هوتکي دولت سفير .

## پايليكونه :

١ - افلاطون : دوره‌ء آثار افلاطون ، د محمد حسن لطفي ژباړه ، خلورم ټوك ، دريم كتاب له ٢٠٩٥ تر ٢١٣١ مخ پورې ، تهران ، ١٣٦٧ ؛ خورشيد ، مهندس : مكتبها واحزاب سياسى ، ٢٠ مخ ، تهران ، ١٣٦١ .

٢ - محمد عاليخانى ، داكتر : حقوق اساسى ، ١٠٩ مخ ، تهران ، ١٣٧٣ د دبستان خپرونه ، مكتبها واحزاب سياسى ، ٢٠ - ٢١ مخونه.

٣ - مكتبها واحزاب سياسى تر ٣٠ مخ وروسته . آ شورى ، داريوش : دانشنامه‌ء سياسى تر ١٤١ مخ وروسته .

٤ - مهرداد ، محمود : فرهنگ جديد سياسى ، ٣٠ مخ ، ايران ، ١٣٦٣ ؛ دانشنامه‌ء سياسى ، تر ٧٦ مخ وروسته .

٥ - فرهنگ جديد سياسى ، ٢١ مخ .

# د مطالبو فهرست



حبیب الله رفیع

# د افغاني جرګې اجتماعي او رواني ارزښتونه

۱۳۷٤

# جرګې

# او د افغاني جرګو اجتماعي او رواني ارزښتونه


لیکوال

حبیب الله رفیع



۱۳۷٤

## د کتاب پیژندنه

*د کتاب نوم : د افغاني جرگو اجتماعي او رواني ارزښتونه

*لیکوال : حبیب الله رفیع

*خپروونکی : د آزاد افغانستان د لیکوالو ټولنه

*د چاپ شمیر : ۲۰۰۰ ټوکه

* د چاپ کال : ۱۳۷٤ هـ ش / ۱۹۹۵ ع

*د چاپ ځای : ټاپ پرنټرز ، پېښور

*مهتمم : عبدالوکیل شینواری

*کمپوزر : سید حسین پاچا




بسم الله الرحمن الرحيم

## سریزه

بشر د « ملي ارادې » او « ملي تصمیم » د واکمن کیدو لپاره اوږده مبارزه او جهاد کړی او د ځانونو په قربانیو او د سرونو په پوریو دې هدف ته رسیدلي ، ملي ارادې ته یې تمرکز ورکړی او د « ملي ګټو » د ساتلو موقع یې برابره کړې ده .

د مطلقه ، فردي او استبدادي حکومتونو پر ځای د مشروطه ، جمهوري او انتخابي حکومتونو غوښتنه دې هدف ته د رسیدو لپاره مهم ګامونه دي او په هیوادونو کې د اولسواکو حکومتونو او آزادو انتخابي پارلمانونو جوړیدل او منځ ته راتګ د همداسې درنو ، اوږدو او پرله پسې او له قربانیو ډکو مبارزو محصول دي .

د یونان نامتو فیلسوف افلاطون په خپل « قانون » نومي کتاب کې د سیاسي اداني او حکومت څومره بیل ډولونه ترخېړنې لاندې ونیول او په عمومي توګه يې د یوه تن ، څو تنو او ډېرو تنو د حکومت ډولونه یاد کړل (۱) . د ده خلف ارسطو دې څېړنو ته پراختیا ورو بخښله او د داسې یوه ایډیال حکومت یادونه يې وکړه چې د خپلې ساحې د اوسیدونکو نیکمرغي يې لوی هدف دی ، او د ده د حکومت په ډولونو کې یو ښه حکومت موجود و او یو بل چې بیا هر یوه يې کیدای شوای د یوه تن ، څو تنو یا ډېرو تنو په لاس کې وي (۲) .

په [illegible] او نولسمه میلادي پیړۍ کې دود دا ؤ چې حکومتونه په دوو سلطنتي او جمهوري ډلو وویشي خو د شلمې پیړۍ نیمایی بله طرح رامنځ ته کړه چې حکومتونه يې په اولسواک « دموکراتیک » ، زورواک « استبدادي » او تل واك ( انحصاري ) وویشل (۳) .

پارلمان د ملي ارادې او ملي تصمیم د واکمن کولو یوه بله لاره وه ، د نړۍ لومړی پارلمان په ۹۲۵ میلادي کال کې د ایسلند په واړه هیواد کې چې د اروپا په شمال کې پروت دی ، جوړ شو او تر دې وروسته ډېر لرغونی پارلمان د انګلستان پارلمان دی چې په ۱۲۶۵ میلادي کال کې جوړ شو . د نړۍ په هیوادونو کې دوه ډوله پارلماني حکومتونه موجود دي ، ځینې هیوادونه یوه جرګه یا پارلمان لري خو په ډېرو هیوادونو کې دوې جرګې یا انتخابي ټولنې موجودې دي چې یوه ته يې د نماینده ګانو جرګه یا اولسي جرګه او بلې ډلې ته يې سنا یا د مشرانو جرګه وایی ، په انګلستان کې دوهم مجلس انتخابي نه وي او د « لاردانو مجلس » ورته وایی چې یوه مشورتي جرګه ده او زیات واك د نماینده ګانو له جرګې سره دی خو په امریکا کې سنا د ملي تصمیم نیولو لوړ مقام دی ځکه چې دی مجلس ته له هر ایالت نه دوه - دوه تنه انتخابي استازي رالیږل کیږي

خو د نمايندہ گانو جرگه یې چې د هر ایالت د استوگنو د شمیر له مخې ټاکله کیږي یوازې په مالي چارو کې ډیر واك لري (٤) .

په ۱۷۸۹ میلادي کال کې د فرانسې لوی انقلاب د ملي ارادې د واکمنۍ لپاره لاره هواره کړه او د اوښتون مشرانو د فرانسې د ملت ټول افراد مجهز کړل ، اشرافي واکمنۍ ته یې خاتمه ورکړه او د منځنۍ طبقې واك یې ټینگ کړ (٥) .

په دې لنډو یادونو کې وینو چې په نړۍ کې د ملي ارادې د اداري لپاره ډیرې ستونزې گاللی شوی خو دې مرحلې ته رارسیدلی او ملتونو حق موندلی چې په خپل برخلیك کې جوړوونکی برخه واخلي .

زموږ گران هیواد افغانستان د تاریخ په اوږدو کې د جرگې په نامه یوه مؤسسه درلودلې چې د ملي ارادې د ښودلو دنده یې ترسره کړې او زموږ لپاره یې د ملي سیاست تاریخ جوړ کړی دی .

موږ په دې رساله کې د همدې ملي ، اجتماعي موسسې تاریخي څیره ، ټولنیز ارزښت ، قانوني پایه او رواني اغیزه څیړو او د افغاني ټولنې په سیاسي بهیر کې یې پر رول او ونډه خبرې کوو .

هو ! همدا د جرگې تاریخي مؤسسه وه چې افغانستان یې په بُحراني حالاتو کې د نجات ساحل ته رارایستلی او په افغانستان کې یې د دموکراسۍ او د خلکو د « ملي سلا » د پلي کولو لاره برابره کړې ده او اوس هم ضرورت دی چې یو ځل بیا دا مؤسسه په خپل ټاکلي ملي اصالت او رسالت راژوندۍ او عملي شي . او له دې سره تاسو د دې کوچنۍ رسالې لوستنې ته رابولم !

په مینه حبیب الله رفیع

۱۱ / ۲ / ۱۳۷٤

حیات آباد ، پستونخوا